د پوهنې وزارت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او د
ښوونکو د روزنې معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي
کتابونو د تالیف لوی ریاست

# د ښوونکي لارښود
# د ژوند مهارتونه
## دویم ټولګی




د ښوونکي لارښود د ژوند مهارتونه
دویم ټولګی





د چاپ کال: ۱۳۹۳هـ ش.

د پوهنې وزارت

د تعلیمي نصاب د پراختیا او د ښوونکو د روزنې معینیت

د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف لوی ریاست

# د ښوونکي کتاب

# د ژوند مهارتونو د تدریس لارښود

# دویم ټولگی

د چاپ کال: ۱۳۹۷ هـ . ش

## ليکوالان:

- د سرمؤلف مرستياله ترينا ستار محب زاده د تعليمي نصاب د پراختيا رياست علمي او مسلکي غړې

## ژباړن:

- د سرمؤلف مرستياله ترينا ستار محب زاده د تعليمي نصاب د پراختيا رياست علمي او مسلکي غړې

## علمي او مسلکي اډيټ:

- د مؤلف مرستيال غلام حسين سليمانزی د تعليمي نصاب د پراختيا رياست علمي او مسلکي غړی
-

## د ژبې اډيټ:

- محمد سهراب ديدار د تعليمي نصاب د پراختيا رياست علمي او مسلکي غړې

## ديني، سياسي او کلتوري کمېټه:

-

## د څارنې کمېټه:

- دکتور اسد الله محقق د پوهنې د وزارت د تعليمي نصاب، د ښوونکو د روزنې او د ساينس د مرکز مرستيال
- دکتور شېرعلي ظريفي د تعليمي نصاب د پراختيا د پروژې رييس
- سرمؤلف عبدالظاهر ګلستاني د تعليمي نصاب د پراختيا او درسي کتابونو د تأليف عمومي رييس

## کمپوز او ډيزاين:

عبدالحق "مومند"



# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی — دا عزت د هر افغان دی
کور د سولې کور د تورې — هر بچی یې قهرمان دی
دا وطن د ټولو کور دی — د بلوڅو د ازبکو
د پښتون او هزاره وو — د ترکمنو د تاجکو
ورسره عرب، گوجر دي — پامیریان، نورستانیان
براهوي دي، قزلباش دي — هم ایماق، هم پشه یان
دا هیواد به تل ځلیږي — لکه لمر پر شنه اسمان
په سینه کې د اسیا به — لکه زړه وي جاویدان
نوم د حق مودی رهبر — وایو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحيم

**د پوهنې د وزیر پیغام**

ګرانو استادانو او ښوونکو،

ښوونه او روزنه د هر هېواد د پراختیا او پرمختګ بنسټ جوړوي. تعلیمي نصاب د ښوونې او روزنې مهم توکی دی چې د علمي پرمختګ او ټولنې د اړتیاوو له مخې رامنځته کېږي. څرګنده ده چې علمي پرمختګ او ټولنیزې اړتیاوې تل د بدلون په حال کې وي. له دې امله لازمه ده چې تعلیمي نصاب هم علمي او رغنده بدلون ومومي. البته نه ښايي چې تعلیمي نصاب د سیاسي بدلونونو او د اشخاصو د نظریو او هیلو تابع شي.

دښوونکی د لارښود دا کتاب چې نن ستاسو په لاس کې دی، پر همدې بنسټ چمتو اوترتیب شوی دی. د تدریس د نویو میتودنو له مخې فعالیتونه په کې ورزیات شوي دي. د زده کړې په بهیر کې د زده کوونکو فعال ساتل د درسي پلان برخه شوې ده.

هیله من یم د دې کتاب منځپانګه، چې له لارښوونو او تعلیمي پلان سره سم د فعالې زده کړې د میتودونو د کارولو له لارې تدریسیږي، ستاسو درنو استادانو د ګټې وړ وګرځي. د زده کوونکو له میندو او پلرونو څخه غوښتنه کیږي، د خپلو لوڼو او زامنو په باکیفیته ښوونه او روزنه کې پرله پسې مرسته وکړي چې د پوهنې هیلې ترسره شي او زده کوونکو او هېواد ته ښې برياوې ور په برخه کړي.

زه پر دې ټکي پوره باور لرم چې زموږ ګران استادان او ښوونکي د تعلیمي نصاب په رغنده پلي کولو کې ستره دنده او درونه مسؤولیت لري.

د پوهنې وزارت تل زیار کاږي چې د پوهنې تعلیمي نصاب د اسلام د سپېڅلي دین له بنسټونو او علمي معیارونو سره سم د ټولنې د څرګندو اړتیاوو له مخې پراختیا ومومي.

په دې ډګر کې د هېواد له ټولو علمي شخصیتونو، د ښوونې او روزنې له پوهانو او د زده کوونکو له میندو او پلرونو څخه هیله لرم چې د خپلو نظریو او رغنده وړاندیزونو له لار ې زموږ له مؤلفانو سره د درسي او د ښوونکي د لارښود کتابونو په لا ښه تالیف کې مرسته وکړي.

له ټولو هغو پوهانو څخه، چې ددې کتاب په چمتو کولو او ترتیب کې یې مرسته کړې، له ملي او نړیوالو درنو موسسو او نورو ملګرو هېوادونو څخه، چې د نوي تعلیمي نصاب په چمتو کولو او تدوین ، د درسي او د ښوونکي د لارښود کتابونو په چاپ او وېش کې یې مرسته کړې ده، مننه او درناوی کوم.

ومن الله التوفيق

دکتور اسدالله حنیف بلخی

د افغانستان د اسلامي جمهوریت د پوهنې وزیر

# د ښوونکي له کتاب څخه په سمه توګه د ګټه اخیستلو لارښوونه

ښاغلی ښوونکی، د وطن د بچیانو د اړتیا او ماشومانو کې د بې مسؤولیتۍ د بې ځایه فرهنګ د لرې کولو او د مسلمانانو سوله غوښتونکي، مبتکر او با عاطفي وګړو په توګه هغوی جوړول او ماشومانو کې د مثبت ذهنیت د منځته راتلو لپاره په افغانستان کې د یوې سالمې ټولنې جوړولو ته هېله مند و اوسو. ددې هېلو د لاسته راوړلو په خاطر لازمه ده چې یو ربښتینی ښوونیز چاپېریال منځته راوړو.

ښوونیز چاپېریال: ښاغلی ښوونکی، سره له دې چې د نورو مضامینو د اړتیاوو له کبله لازمه وګڼله شوه چې د ژوند د مهارتونو مضمون ته په اوونۍ کې یو ساعت وخت ورکړي نو ځکه د درسي کتاب په جوړښت کې لږ بدلون راغلی دی خو د پخواني فعالیت څخه ګټه اخېستل کېږي.

- لوست د لومړني فعالیت سره پیل کړئ د موسکا او خوښۍ سره کوښښ وکړئ چې د ښوونیزې فضا ښاد کړئ.

- د زده کوونکو خبرو ته غوږ ونیسئ، پوښتنو ته یې ځواب ورکړئ او د هغوی هر پرمختګ د تشویق وړ وګڼئ.

- معیوبو، کم جرأتو او ګوښه ناستو زده کوونکو ته ډېر پام وکړئ.

د لوست لپاره تیاری: تر ټولو مخکې د لوست موضوعات او موخې خپل ځان ته واضح کړئ. د فعالیتونو لپاره درسي اړین توکي د ساده محیطي موادو څخه جوړ کړئ. درسي پلان ولرئ د فعالیتونو د ترسره کولو او د انځورونو د تحلیل، د موضوع مطرح کول او کیسه کول په ساده ژبه ځان تیار کړئ.

د تدریس تګلاره: د لومړنیو فعالیتونو څخه وروسته کوښښ وکړئ چې د هر لوست ښوونیزې موخې چې د ښوونکي په لارښود کې راغلي په ساده ژبه بیان کړئ چې زده کوونکي په آګاهانه ډول لوست ته ننوځي چې څه به زده کړي او کوم عملي مهارتونه ترلاسه کړي.

- د (وواياست) د سرلیک لاندې انګېزوي پوښتنې مطرح کړئ، زده کوونکي د خپلې پخوانۍ پوهې پر بنسټ آفاقي ځوابونه ورکوي. دا تاسو سره مرسته کوي چې د زده کوونکو پخوانۍ پوهې سره اشنا شئ او په هوسا توګه لوست پیل کړئ. کوښښ وکړئ د زده کوونکو د سمو ځوابونو په تایید سره د لوست سرلیک ته اشاره وکړئ او هغه پر تخته ولیکئ. هغوی نوي لوست ته متوجه کړئ او کولای شي چې د هغوی د ځوابونو څخه د سریزې په توګه ګټه واخلي.

- د (په انځورونو کې څه وینئ) په فعالیت کې ٤-٦ کسیزې ډلې مخکې له مخکې وټاکئ او ددې ډلو څخه تل په همدې فعالیتونو کې ګټه واخلئ. د ډلې د کمزورتیا په صورت کې کولای شئ چې د ډلې غړي بدل کړئ.

هغوی انځورونه ګوري او تبصرې کوي او نظر ورکوي بیا د ډلې استازي وټاکئ چې د زده کوونکو نظرونه نورو ته بیان کړي او نورو ډلو سره د نظر تبادله وکړي. بیا د زده کوونکو د وینا په تایید د انځورونو په هکله لا زیاته رڼا واچوئ.

- د ډله ییز کار څخه وروسته د (غوږ ونیسئ او ووایاست) تر سرلیک لاندې دوه یا درې کرښې په نظر کې نیول شوي چې تاسې د لوست موخې رسېدو ته نږدې کوي. هغه په لوړ غږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې څه زده کوي. که یو بل زده کوونکی بیا د کتاب له مخې ولوستل شه که نه د هغوی پوښتنه وکړئ چې څه یې زده کړي دي. یو دوه کسان په ساده ژبه د لوست مفهوم بیان کړي. په دې برخه کې د حواسو جمع کول، غوږ نیول، درک کول او د پوهېدلو مهارتونه مطرح دي نه املا او انشا.

- په نورو ډله ییزو یا تمثیلي فعالیتونو کې (د ډرامو ترسره کول) او کیسه کول داوطلب زده کوونکي تشویق کړئ او د هغوی له سرته رسوونو لپاره زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ، زده کوونکي د وخت په تېرېدو سره دې ډول فعالیتونو سره عادت کوي او د هغوی څخه خوند اخلي او نور مهارت ترلاسه کوي.

- د (ووینئ او اړیکه ورکړئ یا ولولئ او اړیکه ورکړئ) په فعالیت کې زده کوونکي په ځانګړې توګه د کتاب مخ ته په ځیر ګوري او د خپل درک پر بنسټ د انځورنو څخه مفهوم اخلي او نوبت نیسي. کوښښ وکړئ چې زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې خپل نظر وړاندې کړي. په پای کې خپل نظر ووایاست او په هر فعالیت کې چې کوم زده کوونکي برخه نه اخلي، فعالیت ته یې ورګډه کړئ.

دا فعالیتونه کولای شي چې لوست لاتحکیم کړي او تاسو د مفهومونو د درک او لازمو مهارتونو د ترلاسه کولو له امله اطمینان پیداکړئ.

- په پای کې یو فعالیت د (پوښتنو ته ځواب ورکړئ) په نامه شته چې په حقیقت کې یوه ارزونه ده چې تاسو د لوست د پیله څخه تر پایه پورې ترسره کوئ. دا پوښتنې تاسو سره مرسته کوي چې د خپل تدریس کړنلاه په څه ډول ځواکمنه کړئ او یا هغه بدله او ښه کړئ.

- په پای کې کورنۍ دنده چې کتاب کې راغلې هغه زده کوونکو ته ووایاست چې د هغوی پام ورته واړول شي او په خپل وخت یې ترسره کړي.

# لړلیک

# لومړی لوست

وخت : ۴۵ دقیقې

| مطلبونه | د مطلبونو شرح | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | په کور کې د ماشومانو رول | |
| د زده کړې موخې | پوهه: ماشومان په کور کې په خپل رول پوه شي.<br>مهارت: خپل رول په ښه توګه ترسره کړای شي.<br>ذهنیت: د کورنۍ د غړي په توګه د خپل رول اهمیت درک کړي. | |
| اساسي ټکي | د کورنۍ غړي، مرسته کول، درناوی او صمیمیت | |
| د لوست مرستندویه توکي | قلم، کتابچه، رومال، باطل کاغذونه | |
| دتدریس میتود | ډله ییزکار، نقش لوبول، پوښتنه او ځواب | |
| مقدماتي فعالیتونه | سلام اچول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخېستل، د نوي کال مبارکي او د کتاب په اړه ځینې لنډ معلومات | ۵ دقیقې |

| وخت | فعالیتونه | مطلبونه |
|---|---|---|
| ۷ دقیقې | ښاغلی ښوونکی دې د لوست اساسي مفهومونه په ساده ژبه بیان کړئ. د لوست موضوع ته د ننوتو لپاره د (وواياست) انګېزوي پوښتنې مطرح کړئ. ښايي زده کوونکي افاقي ځوابونه ورکړي خو تاسې کوښښ وکړئ چې د ځوابونو له منځ څخه د هغوی پام د نوي لوست عنوان ته جلب کړئ چې وپوهېږي او لا ښه په موخو پوه شي. | ورودي څرګندونه |
| ۲۰ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، زده کوونکي په ۶-۴ کسیزو ډلو وويشئ او له هغوی وغواړئ چې د لومړي مخ انځورونه وګوري او هر يو نظر ورکړي. په پای کې د هرې ډلې له استازي وغواړئ چې د انځورونو په هکله د خپلې ډلې نظريې بیان کړي.<br>- ښاغلی ښوونکی د زده کوونکي ټول فعالیتونه، د درسي کتاب د ښوونیزو فعالیتونو منعکس کوونکي دي، نو ځکه په خپل وخت هغوی سره مرسته وکړئ او تشويق يې کړئ، لارښوونه ورته وکړئ او د انځورونو پټ او مهم ټکي د زده کوونکو د خبرو په تاييد تکرار او تشريح کړئ.<br>- ښاغلی ښوونکی، د لوست متن ته د زده کوونکو پام راواړوئ هغه په لوړ غږ ولولئ او د هغوی څخه وغواړئ چې په ځیر سره غوږ ونیسي او وروسته هر څه يې چې زده کړي دي په خپله ساده ژبه بیان کړي.<br>- د زده کوونکو د تمثیلي ټوټې فعالیت واضح کړئ. څلور کسان د خپلې خوښې په توګه وټاکئ چې د ټولګي په وړاندې د پلار، مور، خور او ورور رول په داسې ډول ترسره کړي چې د هغوی څو دندې او رول د نورو په وړاندې ښکاره کړي؛ د بېلګې په توګه: صمیمیت، درناوی، د يو او بل سره مرسته او همکاري کول.<br>- په پای کې له نورو څخه وغواړئ چې پايلې بیان کړي. | د لوست ورکول |
| ۸ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د لوست د تحکیم په خاطر له هغوی وغواړئ چې د دويم مخ انځورونه وګوري او د هغوی اړیکې بیان کړي او وواييي چې د هغوی د اړيکو لپاره څه دليل شتون لري. | د لوست تحکیم |
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د لوست د پای د ارزونې لپاره، د "پوښتنو ته ځواب ورکړئ" پوښتنې مطرح کړئ. ښايي زده کوونکي ځواب ورکړي؛ خو د دوستۍ د تحکیم، درناوی، صمیمیت او همکارۍ کې د هغوی رول او اهمیت لازيات بیان او تکرار کړئ. | ارزونه |
| ۲ دقیقې | هغه ښې چارې چې بايد په کور کې ترسره کوئ نومو ته يې واخلئ او په سرته رسولو کې يې له مور او پلار څخه مرسته وغواړئ. | کورنی کار |

# دویم لوست

وخت : ۴۵ دقیقې

| مطلبونه | د مطلبونو شرح | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | د کور څخه دباندې د ماشومانو رول | |
| د زده کړې موخې | پوهه: زده کوونکي له کور څخه دباندې خپل رول سره اشنا شي.<br>مهارت: له کور څخه دباندې خپل رول په ښه توګه ترسره کړای شي.<br>ذهنیت: له کور څخه دباندې خپل رول درک کړي. | |
| اساسي ټکي | خلکو سره مرسته او همکاري، د چاپېریال د نظافت او ټولنیزو نزاکتونو مراعاتول، صبر او حوصله، او د نورو پر وړاندې درناوی | |
| د لوست مرستندویه توکي | کتابچه، قلم او یوشمیر انځورونه | |
| دتدریس میتود | ډله ییزکار،یوکسیزکار، پوښتنه او ځواب | |
| مقدماتي فعالیتونه | سلام اچول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، دکورني کارپوښتنه، له نوي لوست سره د پخواني لوست ارتباط | ۵ دقیقې |

| وخت | فعالیتونه | مطلبونه |
|---|---|---|
| ۷ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د لوست اساسي مفهومونو په ډېره ساده توګه بیان کړئ او د لوست موضوع ته درسېدو لپاره د ″وواياست″ انګېزوي پوښتنه مطرح کړئ. زده کوونکي ځواب ورکوي، هغوی تشویق کړئ او ورسره مرسته وکړئ، د لوست عنوان ته اشاره وکړئ او د نن ورځې د لوست موضوع بیان کړئ چې د موضوع پر اهمیت پوه شي. | ورودي څرګندونه |
| ۲۰ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، مخکینیو ټاکل شوو ډلو ته دنده ورکړئ چې د ۳ مخ انځورونه وګوري او د انځورونو څخه خپلې اخیستنې یو بل سره شریکې کړي، بیا د هرې ډلې استازی هغه شیان چې د انځورونو څخه یې اخیستې دي نورو ته بیان کړي او د نظر تبادله وکړي، تاسې هغوی سره مرسته وکړئ او تشویق یې کړئ.<br>- زده کوونکو ته د لوست د (غوږ ونیسئ او وواياست) تر سرلیک لاندې متن په لوړ غږ ولولئ. له هغوی څخه وغواړئ چې په ځیر غوږ ونیسي چې څه پوهیږي او هم ځو زده کوونکو ته وار ورکړئ څه یې چې درک کړي هغه په خپله ساده ژبه بیان کړي او بیا تاسې په ساده ژبه د لوست د متن اصلي موخه ورته وواياست.<br>- ښاغلی ښوونکی، په بل فعالیت کې له زده کوونکو وغواړئ چې د نوبت پر اساس قصه وکړي چې د لوست څخه وروسته د کور څخه بهر څه کار کوي او خپل رول په څه ډول ترسره کوي او وواياست چې د کور څخه بهر د هغوی رول څه اهمیت لري؟ | د لوست ورکول |
| ۸ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د (وګورئ او اړیکه ورکړئ) په فعالیت کې زده کوونکي په یوازې توګه انځورونو ته ګوري او بیانوي چې په دې انځورونو کې کومې اړیکې شتون لري؟ په کوم دلیل؟ | د لوست تحکیم |
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د لوست د پای د ارزونې لپاره له زده کوونکو وغواړئ چې پوښتنو ته ځواب ورکړي.<br>لنډه دا چې د خپل رول اهمیت د صبر او حوصلې د ټولنیزو ادابو مراعاتول او له کوره بهر چاپېریال په حفظ الصحې باندې پوه شي او عملي یې کړي. | ارزونه |
| ۲ دقیقې | کوم ښه کارونه چې باید د کور څخه بهر ترسره کړي د هغوی نومونه واخلي. | کورنی کار |

# دریم لوست

وخت : ۴۵ دقیقې

| وخت | د مطلبونو شرح | مطلبونه |
|---|---|---|
| | د کور وسایلو تنظیم او ساتنه | د لوست موضوع |
| | پوهه: زده کوونکي باید په کور کې د سامان ټاکل شوی ځای وپېژني.<br>مهارت: له کارونې څخه وروسته، سامان په خپل ځای کې کېښودل شي.<br>ذهنیت: د کور د سامان د تنظیمولو او ساتنې اهمیت درک کړي. | د زده کړې موخې |
| | تنظیم او ساتنه، سلیقه، ښه خوی | اساسي ټکي |
| | کتابچه، قلم اویوشمیر انځورونه | د لوست مرستندویه توکي |
| | ډله ییزکار،یوکسیزکار، پوښتنه اوځواب او کیسې کول | دتدریس میتود |
| ۵ دقیقې | سلام اچول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، دکورني کارپوښتنه، له نوي لوست سره د پخواني لوست ارتباط | مقدماتي فعالیتونه |

| وخت | فعالیتونه | مطلبونه |
|---|---|---|
| ۷ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د لوست اساسي مفهومونه په ساده توګه بیان کړئ او د لوست موضوع ته د رسېدو لپاره د (وواياست) انګېزوي پوښتنې مطرح کړئ. زده کوونکي ښايي د مخکينی پوهې څخه ځواب ورکړي، هغوی تشویق کړئ او د لوست عنوان ته د اشارې په ترڅ کې نوي لوست ته دننه شئ. | ورودي څرګندونه |
| ۲۰ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، مخکینی تنظیم شوو ډلو ته دنده ورکړئ چې د کتاب د ۵ مخ انځورونه وګوري، خپلو کې بحث وکړي او وواياي چې په هر انځور کې څه شی ويني؟ په پای کې د هرې ډلې استازی د خپلې ډلې اخېستنې او نظريې نورو ته بیان کړي او ډلې په خپلو منځونو کې د نظرونو تبادله وکړي.<br>- ښاغلی ښوونکی د ټولګي فعالیتونه د ښوونیزو موخو را سربېره کوونکي دي. هغوی سره مرسته او تشویق يې کړئ او هغه ټکي چې د زده کوونکو له ویناوو څخه پاتې وي د انځورونو له مخې ورته بیان کړئ.<br>- د لوست متن د کتاب له مخې په لوړ غږ ولولئ له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په ځیر سره غوږ ونیسي چې څه پوهېږي؟ بیا له هغوی څخه پوښتنه وکړئ چې د هغه مفهوم ساده بیان کړي. څو زده کوونکي د خپل درک له مخې کولای شي چې تبصره وکړي. په پای کې تاسې په ساده توګه د هغوی عمده ټکي تکرار کړئ.<br>- ښاغلی ښوونکی د (کیسه وکړئ) د فعالیت لپاره پوښتنه مطرح کړئ او زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې فکر وکړي او د خپلې خوښې کیسه یا یوه خاطره ووايي او خپل احساس بیان کړي. | د لوست ورکول |
| ۸ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د لوست د لا تحکیم لپاره له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د ٦ مخ انځورونه په یوازې توګه وګوري او وواياي چې په څه دلیل انځورونه یو او بل سره اړیکه لري او د هغه څخه يې څه مفهوم اخېستی دی. | د لوست تحکیم |
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی د خپل اطمینان لپاره د لوست په پای کې د زده کوونکو څخه وغواړئ چې پوښتنو ته ځواب ورکړي او هغوی سره مرسته وکړئ او عمده ټکي تکرار کړئ او پوه شي چې د کور سامان په څه ډول تنظیمېږي او ساتنه يې ولې اړینه ده؟ | ارزونه |
| ۲ دقیقې | د کور د سامان د تنظیمولو د اهمیت په هکله د خپل مور او پلار سره بحث وکړئ. | کورنی کار |

# څلورم لوست

وخت : ۴۵ دقیقې

| وخت | د مطلبونو شرح | مطلبونه |
|---|---|---|
| | د کور ستونزوحل | د لوست موضوع |
| | پوهه: زده کوونکي باید وپوهېږي چې هره ستونزه د حل څو لارې لري.<br>مهارت: د حل مناسبې لارې وسنجولای شي.<br>ذهنیت: د مذاکرې او مفاهمې اهمیت د حل د ښې لارې د ټاکلو لپاره درک کړي. | د زده کړې موخې |
| | په کور کې د ستونزو درک کول، د حل لاره پیداکول، د مشورې اخېستل او حوصله کول | اساسي ټکي |
| | کتابچه، قلم اویوشمیر انځورونه | د لوست مرستندویه توکي |
| | ډله ییزکار،یوکسیزکار، پوښتنه اوځواب اومشاهده | دتدریس میتود |
| ۵ دقیقې | سلام اچول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، دکورني کارپوښتنه، له نوي لوست سره د پخواني لوست ارتباط | مقدماتي فعالیتونه |

| مطلبونه | فعالیتونه | وخت |
| --- | --- | --- |
| ورودي څرګندونه | ښاغلی ښوونکی، د لوست موخې په ساده ژبه بیان کړئ چې زده کوونکي ښه پوه شي. انګېزوي پوښتنې په عام ډول مطرح کړئ. چې زده کوونکي په خپله خوښه ځواب ورکړي. هغوی وهڅوئ چې د پوښتنو اړیکې له عنوان سره واضح کړي. | ۷ دقیقې |
| د لوست ورکول | - ښاغلی ښوونکی، مخکینیو ټاکل شوو ډلو ته دنده ورکړئ چې د کتاب د ۷ مخ انځورونه وګوري، په خپلو کې سره مشوره وکړي او ووایي چې هر انځور کومه موخه لري. په پای کې د ډلې استازي د ډلو د ټولو غړو نظریې ټولوي او نورو ته یې بیانوي. باید کوښښ وشي چې ډلې نظرونه تبادله کړي.<br>- ښاغلی ښوونکی، څنګه چې د انځورونو په شمول ټول فعالیتونه د پوهنیزو موخو بشپړوونکي وي تاسې د هغوی سره کمک وکړئ او خبرې یې تایید کړئ. په پای کې هغه څه چې د انځورونو په اړه یې لازم ګڼئ او د زده کوونکو له ویلو څخه پاتې وي، تکرار کړئ.<br>- د (واورئ او ووایاست) تر سرلیک لاندې لیکنې په لوړ غږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په دقت سره یې واوري.<br>هغه مفهوم چې ورڅخه اخلي په ساده ژبه سره بیانوي وروسته تاسې هم په ساده ژبې سره ډېر معلومات ورکړئ.<br>- ښاغلی ښوونکی، له زده کوونکو څخه وغواړئ چې لومړی فکر وکړي که چېرې له کومې ستونزې سره مخ شوي وي، څرنګه یې ورته حل لاره پیداکړې ده، قصه وکړي او خپلې تجربې د سره تبادله کړي. که چېرته یې امکان لرلو د کورنۍ ستونزې یوه قصه د حل لارې سره یوځای تاسې خپله ووایاست. | ۲۰ دقیقې |
| د لوست تحکیم | ښاغلی ښوونکی، بېلابېل فعالیتونه، ممد او پوهنیزو موخو ته د رسېدو لپاره دې ټول زده کوونکي په فعالیتونو کې شریک کړئ. له هغوی څخه بیا هم وغواړئ چې د ۸ مخ انځورونو ته پام وکړي. د انځورونو اړیکې پیداکړي او د هغوی د اړیکو دلیل بیان کړي. په همدې ترتیب د لوست موضوع ګانو ته تحکیم ورکړي. | ۸ دقیقې |
| ارزونه | د لوست له ورکولو او د زده کړې موخې څخه د اطمینان حاصلولو لپاره له هغوی څخه د اخري پوښتنو ځوابونه وغواړئ کوښښ وکړئ چې د هغوی ځوابونه د لوست هدف ترلاسه کړي. | ۵ دقیقې |
| کورنی کار | هغه څه مو چې د یوې ستونزې د حل لپاره یاد کړي دي، خپلو دوستانه ته یې تشریح کړئ. | ۲ دقیقې |

# پنځم لوست

وخت : ۴۵ دقیقې

| وخت | د مطلبونو شرح | مطلبونه |
|---|---|---|
| | په کور کې له خطر مخنیوی | د لوست موضوع |
| | پوهه: زده کوونکي په کور کې د خطر څخه د مخنیوي په لارو وپوهېږي.<br>مهارت: په کور کې له خطر څخه ځان وساتلای شي.<br>ذهنیت: په کور کې د خطرونو د مخنیوي اهمیت درک کړي. | د زده کړې موخې |
| | د خطر د عواملو پېژندل، په کور کې د خطر د رامنځته کېدو د مخنیوي لارې چارې | اساسي ټکي |
| | کتابچه، قلم اویوشمیر انځورونه | د لوست مرستندویه توکي |
| | ډله ییزکار، یوکسیزکار، پوښتنه اوځواب | دتدریس میتود |
| ۵ دقیقې | سلام اچول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، دکورني کارپوښتنه، له نوي لوست سره د پخواني لوست ارتباط | مقدماتي فعالیتونه |

| مطلبونه | فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| ورودي څرګندونه | ښاغلی ښوونکی، د لوست موخې په ساده ژبه بیان کړئ او له زده کوونکو څخه د (وواياست) پوښتنې مطرح کړئ. ښايي زده کوونکي د خپلې مخکینۍ پوهې څخه ځواب ورکړي او کوښښ وکړئ چې د هغوی وینا د نوي لوست لپاره ورودي سریزه شي. | ۷ دقیقې |
| د لوست ورکول | - ښاغلی ښوونکی، له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په خپلو ګروپونو کې د ۹ مخ انځورونو ته پام وکړي. هغه څه چې برداشت کوي، یو له بل سره پرې تبصره وکړي وروسته د ګروپ استازی په لوړ غږ نورو ته بیان کړي او یو له بل سره د نظر تبادله وکړي.<br>- ښاغلی ښوونکی، د (غوږ ونیسي او وواياست) تر سرلیک لاندې د لوست متن په لوړ غږ ولولئ. له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په دقت سره غوږ ونیسي او په هغه څه چې پوهیږي په خپله ساده ژبه بیان کړي، وروسته د هغې مفهوم په ساده ژبه هغوی ته توضیح کړئ.<br>- په ګروپي فعالیت کې ګروپونه وهڅوئ چې په کور کې د ۵ خطرناکو شیانو نومونه واخلي. یو له بل سره په مشوره سمه او ناسمه ګټه اخیستنه واضح کړي او یو له بل سره د نظر تبادله وکړي. | ۲۰ دقیقې |
| د لوست تحکیم | - ښاغلی ښوونکی د لا ډېر تمرین په خاطر د (وګورئ او اړیکه ورکړئ) له انځور څخه په ګټه اخیستنې سره هغوی تشویق کړئ چې په یوازې ډول وګوري، د هغې ارتباط په دلایلو سره شرح کړي. له هغې څخه سمه ګټه اخیستنه بیان کړي او لوست ته تحکیم ورکړي. | ۸ دقیقې |
| ارزونه | - ښاغلی ښوونکی، د لوست د تحکیم، د پوهې او درک د اطمینان حاصلولو په خاطر له زده کوونکو څخه وغواړئ چې پوښتنو ته ځوابونه ورکړي، هغوی تشویق او مهم موضوعات تکرار کړئ. | ۵ دقیقې |
| کورنی کار | د څو خطرناکو شیانو نومونه واخلئ چه په کورکې د خطرلامل کیږي. | ۲ دقیقې |

# شپږم لوست

وخت : ۴۵ دقیقې

| وخت | د مطلبونو شرح | مطلبونه |
|---|---|---|
| | کورني مراسم | د لوست موضوع |
| | پوهه: په کور کې د محفلونو او مجلسونو سره بلد شي.<br>مهارت: په مجلس کې اداب مراعات کړای شي.<br>ذهنیت: په کور کې د مجلس د ادابو رعایت کولو اهمیت درک کړي. | د زده کړې موخې |
| | په کور کې د مجلسونو پېژندل او د ځینو نزاکتونو مراعات کول | اساسي ټکي |
| | کتابچه، قلم اویوشمیر انځورونه او ګلونه | د لوست مرستندویه توکي |
| | ډله ییزکار، یوکسیزکار، پوښتنه اوځواب او انځورونه کتل | دتدریس میتود |
| ۵ دقیقې | سلام اچول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، دکورني کارپوښتنه، له نوي لوست سره د پخواني لوست ارتباط | مقدماتي فعالیتونه |

| وخت | فعالیتونه | مطلبونه |
|---|---|---|
| ۷ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د لوست اساسي ټکي په ساده ژبه بیان کړئ، انګېزوي پوښتنې د (ووایاست) تر سرلیک لاندې مطرح کړئ چې زده کوونکي ځواب ورکړي او هغوی له ځوابونو څخه د نوي لوست لپاره د ورودي سریزې په توګه ګټه واخلئ او د لوست عنوان د تختې پرمخ ولیکئ. | ورودي څرګندونه |
| ۲۰ دقیقې | - ښاغلی ښوونکی، ګروپونو ته دنده ورکړئ چې د ۱۱ مخ انځورونه وګوري او هغه څه چې برداشت کوي د ګروپونو غړي یو له بل سره مشوره وکړي د هر ګروپ استازي خپلې څرګندونې په لوړ غږ بیان کړي کوښښ وشي چې نظرونه تبادله شي.<br>- د (غوږ ونیسئ او ووایاست) تر سرلیک لاندې د لوست متن په لوړ غږ ولولئ. له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په ځیر سره غوږ ونیسي. زده کوونکي هغه څه چې پوهېږي په ساده ژبه بیان کړي. تاسې هم عمده ټکي په ساده ژبه تکرار کړئ.<br>- له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په ګروپي بڼه د کورنۍ مجلس د ادابو د مراعاتولو په اهمیت یو له بل سره خبرې وکړي. وروسته ګروپونه یو له بل سره د نظر تبادله وکړي. | د لوست ورکول |
| ۸ دقیقې | - د لوست د تحکیم لپاره له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په یوازې ډول فکر وکړي ووینې چې په انځورونو کې کوم اداب رعایت شوي دي او کوم نزاکتونه په نظر کې ندي نیول شوي او هم ووایاست چې څه شی د مجلس د نظم سبب کېږي او څه شی د مجلس د بې نظمۍ سبب کېږي. | د لوست تحکیم |
| ۵ دقیقې | د لوست د ارزونې او د اطمینان حاصلولو په خاطر پوښتنې وکړئ چې هغوی ځوابونه ورکړي، له هغوی سره کمک وکړئ او مهم ټکي یې تکرار کړئ. | ارزونه |
| ۲ دقیقې | د کورنۍ د مراسمو رعایت کولو د اهمیت په هکله د خپل پلار او مور سره بحث وکړئ. | کورنی کار |

# اووم لوست

وخت : ۴۵ دقيقې

| وخت | د مطلبونو شرح | مطلبونه |
|---|---|---|
| | د ورځنيو کارونو تنظيمول | د لوست موضوع |
| | پوهه: زده کوونکي بايد د ورځنيو کارونو په اهميت پوه شي.<br>مهارت: د ورځنيو کارونو د سرته رسولو لپاره وخت تعين کړای شي.<br>ذهنيت: د ورځنينو کارونو د مهال ويش اهميت درک کړي. | د زده کړې موخې |
| | د ورځنيو کارونو پېژندل، د ورځنيو کارونو د سرته رسولو لپاره د مهال ويش تعينول | اساسي ټکي |
| | کتابچه، قلم او يوشمېر انځورونه | د لوست مرستندويهه توکي |
| | ډله ييزکار، يوکسيزکار، پوښتنه اوځواب | دتدريس ميتود |
| ۵ دقيقې | سلام اچول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظيم، د حاضرۍ اخيستل، دکورني کارپوښتنه، له نوي لوست سره د پخواني لوست ارتباط | مقدماتي فعاليتونه |

| مطلبونه | فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| ورودي ځرګندونه | ښاغلی ښوونکی، د لوست اساسي ټکي په ساده ژبه بیان کړئ چې د زده کوونکو پام جلب کړي. د (ووایاست) پوښتنې مطرح کړئ. ښایي زده کوونکو ځوابونه ولري. هغوی وهڅوئ او کوښښ وکړئ چې د هغوی له ځوابونو څخه د لوست سرلیک وباسئ او د تختې پرمخ یې ولیکئ. | ۷ دقیقې |
| د لوست ورکول | ښاغلی ښوونکی، زده کوونکو ته دنده ورکړئ چې په مخکې تعین شوو ګروپونو کې د ۱۳ مخ انځورونو ته پام وکړي. هغه څه چې برداشت کوي یو بل ته دې ووایي. وروسته د ګروپ استازی ځرګندونې په لوړ غږ بیان کړي، یو له بل سره د نظر تبادله وکړي.<br>- د (غوږ ونیسئ) او (ووایاست) تر سرلیک لاندې د لوست متن په لوړ غږ د کتاب له مخې ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په دقت سره غوږ ونیسي. وروسته یې په ساده ژبه بیان کړي چې له متن څخه یې څه مفهوم اخیستی دی.<br>وروسته د ورځني مهال ویش د اهمیت په هکله ورته معلومات ورکړئ. زده کوونکي په ګروپونو وویشئ. زده کوونکو ته وخت ورکړئ هغه ورځني کارونه چې سرته رسوي د وخت په نظر کې نیولو سره تقسیم بندي کړي. وروسته یې په نوبت تشریح کړئ چې په ورځ کې څرنګه کارونه جمع بندی کوي. وروسته خپل نظرونه له نورو ډلو سره شریک کړي. | ۲۰ دقیقې |
| د لوست تحکیم | ښاغلی ښوونکی د لوست د لاتحکیم لپاره هغه کلمې چې لیکل شوي د هغوی اړیکې د کور، ښوونځي او د کور څخه دباندې چارو کې پیداکړئ. د کاغذ په پاڼه کې په بېلابېله توګه یو د بل لاندې ولیکئ او خپل منطقي دلیل هم ذکر کړئ. | ۸ دقیقې |
| ارزونه | د لوست د موخو د لاسته راوړلو او د اطمینان په خاطر د لوست د پای پوښتنې وکړئ چې زده کوونکي په وخت د کار د نه سرته رسولو په تاوان پوه شي. کوښښ وکړئ چې یو مهال ویش د خپلو کارونو د سرته رسولو لپاره جوړ کړي. | ۵ دقیقې |
| کورنی کار | د ورځنیو کارونو لپاره یو مهال ویش ترتیب کړئ. مور او پلار ته یې وښایاست او وګورئ چې هغوی څه نظر ورکوي. | ۲ دقیقې |

# اتم لوست

وخت : ۴۵ دقیقې

| مطلبونه | د مطلبونو شرح | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | ښه زده کوونکی | |
| د زده کړې موخې | پوهه: زده کوونکی باید د ښه زده کوونکي په نېکو صفتونو پوه شي.<br>مهارت: د یو زده کوونکي ښو صفتونو څخه پیروي وکړای شي.<br>ذهنیت: د ښه والي اهمیت درک کړي. | |
| اساسي ټکي | په نېکوصفتونو پوهېدل، دښه والي پیروي، دښه والي اهمیت درک کول | |
| دلوست مرستندویه توکي | کتابچه، قلم اویوشمیر انځورونه | |
| دتدریس میتود | پوښتنه او ځواب، لوستل، د انځورونو لیدل، ډله ییز او انفرادي فعالیتونه | |
| مقدماتي فعالیتونه | سلام اچول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، دکورني کارپوښتنه، له نوي لوست سره د پخواني لوست ارتباط | ۵ دقیقې |

| وخت | فعالیتونه | مطلبونه |
|---|---|---|
| ۷ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د لوست اساسي ټکي په ساده ژبه بیان کړئ چې د لوست موضوع زده کوونکو ته واضح شي. د (ووایاست) انګېزوي پوښتنې مطرح کړئ. ښایي د زده کوونکو ځوابونه د لوست د سرلیک د پیداکولو په برخه کې مرسته وکړي او هم د نوي لوست لپاره ښه سریزه شي. | ورودي څرګندونه |
| ۲۰ دقیقې | - ښاغلی ښوونکی، د زده کوونکو د ټاکل شوې ډلې څخه وغواړئ چې د کتاب د ۱۵ مخ انځورونه وګوري او خپلو کې مشوره وکړي او نظر ورکړي بیا د ډلې استازی نظریې نورو سره شریکي کړې چې د ډلو د نظریو تبادله وشي.<br>- د لوست متن د (غوږ ونیسئ) او (ووایاست) تر سرلیک لاندې په لوړ غږ ولولئ، له زده کوونکو وغواړئ چې په ځیر غوږ ونیسي. بیا څه یې چې درک کړي وي په خپله ساده ژبه بیان کړي. تاسې هغوی سره مرسته وکړئ او د هغوی څخه وغواړئ چې د خپلو ښو ځانګړتیاوو په هکله فکر وکړي او بیا یې نورو ته بیان کړي.<br>- په انفرادي فعالیت کې له ټولو زده کوونکو څخه وغواړئ چې فکر وکړي او د ښه زده کوونکي یو صفت نوم واخلي او یوه جمله ورته جوړه کړي او څو کسانو ته وخت ورکړئ چې ښې جملې تکرار کړي.<br>- له زده کوونکو څخه وغواړئ هغه دلیلونه پیداکړي چې ولې باید ښه و اوسو؟ هغوی تشویق کړئ کوښښ وشي چې ټول زده کوونکي ښه دلیلونه د ښه اوسېدو لپاره وټاکي. | د لوست ورکول |
| ۸ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د زده کوونکو پام د ۱٦ مخ انځور ته راواړوئ چې هر یو فکر وکړي هغه ښه صفتونه چې په انځور کې ویني پیداکړي، بیا نوبت واخلي. څو زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې د انځورونو صفتونه بیان کړي او لوست ته تحکیم ورکړي. | د لوست تحکیم |
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، پوښتنې مطرح کړئ چې ځوابونه ورکړي او ووایاست چې په څه ډول کولای شئ یو ښه زده کوونکی و اوسئ، لوست ووایاست، رښتیا ووایاست، جګړه مار مه اوسئ، درناوی وکړئ او مهربانه اوسئ او نور دلیلونه راوړئ چې ولې ښه زده کوونکی ټولو باندې ګران وي او په دې توګه موخه ترلاسه کړئ. | ارزونه |
| ۲ دقیقې | د یو زده کوونکو څو ښه صفتونه خپل مور او پلار ته وویاست او په هکله دهغوی نظرونه وغوارئ. | کورنی کار |

# نهم لوست

وخت : ۴۵ دقیقې

| وخت | د مطلبونو شرح | مطلبونه |
|---|---|---|
| | مرسته کول او مرسته غوښتل | د لوست موضوع |
| | پوهه: باید دمرستې اخېستلو او مرستې کولو لارې او وخت باندې پوه شي.<br>مهارت: په عملي توګه مرسته وغوښتل شي او مرسته وکولای شي.<br>ذهنیت: دمرستې کولو اومرستې اخېستلو څخه دارامۍ احساس وکړي. | د زده کړې موخې |
| | د مرستې اخېستلو او مرستې کولو لارې | اساسي ټکي |
| | پیسې، کتابچه، قلم او یوشمیر انځورونه | د لوست مرستندویه توکي |
| | ډله ییزکار، یوکسیزکار، پوښتنه اوځواب | دتدریس میتود |
| ۵ دقیقې | سلام اچول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، دکورني کارپوښتنه، له نوي لوست سره د پخواني لوست ارتباط | مقدماتي فعالیتونه |

| مطلبونه | فعالیتونه | وخت |
| --- | --- | --- |
| ورودي ځرګندونه | ښاغلی ښوونکی، د لوست اساسي ټکي په ساده ژبه بیان کړئ، چې هغوی لوست ته وردننه شي او سرلیک د تختې پرمخ ولیکئ او د (وواياست) انګېزوي پوښتنه مطرح کړئ. ښايي ځواب توپير وکړي، خو هغوی سره مرسته وکړئ او نوي لوست ته وردننه شئ. | ۷ دقیقې |
| د لوست ورکول | - ښاغلی ښوونکی، که په ډله ییز کار کې کومه ستونزه لرئ، کولای شئ چې ګروپونه بدل کړئ او بیا له هغوی وغواړئ چې د ۱۷ مخ انځورونه په ځیر وګوري، هر څه چې زده کوي یو او بل سره ووايي، مشوره وکړئ بیا د ډلې استازی د ټولو نظر نورو ته بیان کړي او د نظرونو تبادله وکړي.<br>- د (غوږ ونیسئ او وواياست) تر سرلیک لاندې متن په لوړ غږ ولولئ او له زده کوونکو وغواړئ چې په ځیر غوږ ونیسي چې د لوست په مفهوم پوه شي. بیا د څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې په خپله خوښه هر څه چې پوهېدلي دي نورو ته بیان کړي. تاسو هم د ویلو وړ ټکي بیا په ساده توګه بیان کړئ چې هغوی عادت واخلي.<br>- د فعالیت د سرته رسولو لپاره لومړی څلور یا شپږ کسیزې ډلې جوړې کړئ او هغوی ته دنده ورکړئ چې د مرستې اخیستلو او مرستې کولو له لارې او څو د مرستې کولو او مرستې اخیستلو موقع په مشورې سره لست کړي او لوستل او د نظر تبادل لپاره وخت ونیسئ او ګروپونه لومړی، دویم او درېیم اعلان او تشویق یې کړئ. | ۲۰ دقیقې |
| د لوست تحکیم | - ښاغلی ښوونکی د لوست د لا تحکیم لپاره هر یو د ۱۸ مخ انځورونه په دقت ګوري او اړیکې یې ومومي د هر یو لپاره دلیل ووایاست. | ۸ دقیقې |
| ارزونه | د لوست د موضوع د پوهې او درک د اطمینان د ترلاسه کولو لپاره د لوست د پای پوښتنې مطرح کړئ چې هغوی د موضوع پر اهمیت لا پوه شي. | ۵ دقیقې |
| کورنی کار | له زده کوونکو څخه وغواړئ چه بیان کړې چې په څه ډول نورو سره مرسته کوي او څه وخت له نورو څخه مرسته غواړي. | ۲ دقیقې |

# لسم لوست

وخت : ۴۵ دقیقې

| وخت | د مطلبونو شرح | مطلبونه |
|---|---|---|
| | د مسلمان صفتونه | د لوست موضوع |
| | پوهه: زده کوونکی باید د یو ښه مسلمان ځانګړتیا باندې پوه شي.<br>مهارت: د یو مسلمان د ښو صفتونو څخه په ښه توګه پیروي وکړي.<br>ذهنیت: د یو ښه مسلمان ارزښت درک کړي. | د زده کړې موخې |
| | د یو مسلمان د نېکو ځانګړتیاوو پېژندنه او د هغوی عملي کول | اساسي ټکي |
| | کتابچه، قلم او یوشمیر انځورونه | د لوست مرستندویه توکي |
| | ډله ییزکار، یوکسیزکار، لوستل، د انځورونو کتل، پوښتنه او ځواب | دتدریس میتود |
| ۵ دقیقې | سلام اچول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، دکورني کارپوښتنه، له نوي لوست سره د پخواني لوست ارتباط | مقدماتي فعالیتونه |

| وخت | فعالیتونه | مطلبونه |
| --- | --- | --- |
| ۷ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د لوست اساسي مفهومونه په ساده ژبه بیان کړئ چې زده کوونکي د لوست موضوع درک کړي. د (ووایاست) انګېزوي پوښتنې مطرح کړئ، ښایي د زده کوونکو افاقي ځوابونه د قناعت وړ نه وي خو د نوي لوست او د هغه د عنوان لپاره به ښه سریزه وي. هغوی سره مرسته وکړي چې نوي لوست ته ننوځي. | ورودي څرګندونه |
| ۲۰ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د مخکې ټاکل شوې ډلې څخه وغواړئ چې د درسي کتاب د ۱۹ مخ انځورونه په ځیر سره وګوري، په هکله یې نظر ورکړي او تبصره پرې وکړي. بیا د ډلې استازي خپلې نظریې راټولې او نورو ته بیان کړي او نورو ډلو سره د نظر تبادله وکړي.<br>- د لوست متن په لوړ غږ ولولئ. له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په ځیر سره غوږ ونیسي. کوم شیان چې درک کوي او پوهېږي په وار سره په ساده ژبه بیان کړي، تاسې هغوی سره مرسته وکړئ، مهم ټکي یې تکرار کړئ چې د یو ښه مسلمان ځانګړتیا سره اشنا شي او د هغوی سره عادت وکړي.<br>- زده کوونکي په ډلو کې د ښه مسلمان څو ځانګړتیاوې لست کړي او بیا نوبت ونیسي او ولولي او نورو سره د نظر تبادله وکړي او د یو صفت لپاره یوه جمله جوړه کړي. | د لوست ورکول |
| ۸ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، له ټولو زده کوونکو څخه وغواړئ چې په انفرادي توګه د ۲۰ مخ انځورونه په ځیر وګوري. بیا د فکر کولو وروسته ووایاست چې په انځورونو کې کوم انځور د ښه مسلمان په اړه دی او کوم ځانګړتیا ردوئ چې لوست تحکیم وومومي. | د لوست تحکیم |
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د لوست د موخو د ترلاسه کولو لپاره له زده کوونکو وغواړئ چې پوښتنو ته ځواب ووایي. د یو مسلمان د ښو صفتونو نومونه واخلئ او د هغوی د ښه والي دلیلونه ووایاست او هم ووایاست چې په څه ډول د خدای تعالی د رضایت لامل ګرځي. | ارزونه |
| ۲ دقیقې | د مورو او پلار سره د یو ښه مسلمان د ځانګړتیا په هکله خبرې وکړئ او ویاست چه څنګه په دې اوصافو عادت شو. | کورنی کار |

# یوولسم لوست

وخت : ۴۵ دقیقې

| وخت | د مطلبونو شرح | مطلبونه |
|---|---|---|
| | د ناروغانو پوښتنه | د لوست موضوع |
| | پوهه: زده کوونکي د ناروغانو د پوښتنې د ادابو اهمیت درک کړي.<br>مهارت: ځینې نزاکتونه د ناروغانو په وړاندې مراعات کړی شي.<br>ذهنیت: د ناروغانو سره د همدردۍ له امله د خوشحالۍ احساس وکړي. | د زده کړې موخې |
| | د ناروغ د پوښتنې د پوهېدو طریقه، د ناروغ پر وړاندې د ځینې نزاکتونو مراعاتو | اساسي ټکي |
| | تازه ګل، د مڼې، کېلې او کینو انځورونه | د لوست مرستندویه توکي |
| | ډله ییزکار،یوکسیزکار، پوښتنه اوځواب، تمثیل او د انځورونو لیدل | دتدریس میتود |
| ۵ دقیقې | سلام اچول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، دکورني کارپوښتنه، له نوي لوست سره د پخواني لوست ارتباط | مقدماتي فعالیتونه |

| وخت | فعالیتونه | مطلبونه |
|---|---|---|
| ۷ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د لوست اساسي ټکي په ساده ژبه بیان کړئ چې زده کوونکي په موضوع پوه شي. عنوان ولیکئ او انګېزوي پوښتنې مطرح کړئ ښایي د هغوی ځوابونه د لوست د پیل لپاره ښه سریزه وي. | ورودي څرګندونه |
| ۲۰ دقیقې | - ښاغلی ښوونکی، د زده کوونکو د پخوا څخه ټاکل شوې ډلې د ۲۱ مخ انځورونو لیدو ته تشویق کړئ او له هغوی وغواړئ په هغه څه چې پوه شوي، د خپلو ډلو د غړو په مشوره نظر ورکړي. د ډلې استازي نظریات نورو ته بیان او تر پای پورې نظریات تبادله کړي.<br>- د زده کوونکو پام د (غوږ ونیسي او وواياست) د سرلیک متن ته راجلب کړئ او هغه په لوړ غږ ولولئ او له هغوی وغواړئ چې په ځیر سره غوږ ونیسي چې څه پوهیږي، وروسته په داوطلبه توګه څو زده کوونکي په هغه څه چې پوه شوي په خپله ژبه ووايي، تشویق یې کړئ او عمده ټکي د هغوی د وینا په تایید تکرار کړي.<br>- د تمثیلي فعالیت لپاره درې نفر داوطلب د ټولګي په وړاندې راوغواړئ چې یو یې د ناروغ سړي او دوه نفره چې د ناروغ پوښتنې ته راغلي وي رول ولوبوي له زده کوونکو وغواړئ چې تمثیل ته پام ونیسي چې څنګه له ناروغ څخه ډاډګېرنه کوي وروسته د وخت په لرلو سره نورې ډلې کولی شي چې په خپله طریقه تمثیل تکرار کړي. | د لوست ورکول |
| ۸ دقیقې | له زده کوونکو وغواړئ هر یو د ۲۲ مخ انځورونو ته ځیر شي، د انځورونو اړیکه پیداکړي او دلیل یې ووایي. ښایي هغه دلیلونه چې زده کوونکي یې وړاندې کوي د لوست تحکیم لپاره ګټور وي. | د لوست تحکیم |
| ۵ دقیقې | له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړئ او نظر وغواړئ چې یو ناروغ د خپل شاوخوا د کسانو مهرباني او شفقت ته اړتیا لري؛ مثلاً: ارامي او د صمیمیت فضا ناروغ سره څومره مرسته کوي؟ | ارزونه |
| ۲ دقیقې | خپل دوستان وپوهوی چه د ډاکټر له درملو څخه پرته ناروغ سړی له ستاسو څه توقع لري؟ | کورنی کار |

# دولسم لوست

وخت : ۴۵ دقیقې

| وخت | د مطلبونو شرح | مطلبونه |
|---|---|---|
| | د عامه غونډې و اداب | د لوست موضوع |
| | پوهه: زده کوونکي په عام مجلس کې د برخه اخېستلو پر ادابو پوه شي.<br>مهارت: عملاً ځینې اداب او نزاکتونه مراعات کړی شي.<br>ذهنیت:په عامه مجلسونوکې د ادابو مراعاتونوڅخه دارامۍ احساس وکړي. | د زده کړې موخې |
| | په عام مجلس کې د نزاکتونو او اداب درک او مراعات کول | اساسي ټکي |
| | د عام مجلس انځورونه | دلوست مرستندویه توکي |
| | ډله ییزکار، سوال اوځواب | دتدریس میتود |
| ۵ دقیقې | سلام اچول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، دکورني کارپوښتنه، له نوي لوست سره د پخواني لوست ارتباط | مقدماتي فعالیتونه |

| مطلبونه | فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| ورودي ځرګندونه | ښاغلی ښوونکی، د لوست اساسي مفهومونه واضح کړئ چې زده کوونکي ښه وپوهیږي، د لوست عنوان د تختې پرمخ ولیکئ او د (وواياست) انګېزوي پوښتنې له هغوی وکړئ. ښايي د هغوی افاقي ځوابونه د نوي لوست په سریزه کې مرسته وکړي. | ۷ دقیقې |
| د لوست ورکول | ښاغلی ښوونکی د ډله ییز کار لپاره له هغوی وغواړئ چې د ۲۳ مخ انځورونه په ځیر وګوري او خپلې اخیستنې د ډلې له غړو سره شریکې کړي چې د ډلې استازی راټول شوي نظرونه نورو ته ووايي او په پای کې نظرونه تبادله کړي.<br>- د لوست متن (غوږ ونیسئ او وواياست) تر سرلیک لاندې په لوړ غږ ووایاست او له هغوی وغواړئ چې په ځیر غوږ ونیسي چې څه يې زده کړي. وروسته څو کسانو ته په داوطلب ډول وخت ورکړئ په هغه څه چې پوهیږي نورو ته ووايي او خپل عمده ټکي تکرار کړي.<br>- په فعالیت کې یو له بل سره کار وکړي، ټولګی په شپږو ډلو وویشي او له هغوی وغواړي په عام مجلسونو کې د ګډون د څو ادابو نومونه واخلي. په مشوره نظر ورکړئ چې ددې ادابو د مراعات کولو طریقې په څه ډول دي. وروسته د ټولګي په وړاندې د خپل کار پایلې بیان کړي او ګټونکي لومړۍ، دویمه او دریمه ډله اعلان شي. | ۲۰ دقیقې |
| د لوست تحکیم | ښاغلی ښوونکی، له زده کوونکو وغواړئ چې لست شوي کلمات ولولي او د دوو سرلیکونو (په عام مجلس کې بې نظمي او نظم) ته اړیکه ورکړي چې د لوست موضوع ډېره تحکیم ومومي. د امکان په صورت کې د تختې پرمخ او یا په کاغذ لستونه ترتیب کړئ. | ۸ دقیقې |
| ارزونه | له زده کوونکو څخه د لوست د پای پوښتنې وکړئ چې هغوی ځوابونه ورکړي، په یو مجلس کې د بې نظمۍ لامل څه شی کیږي او څرنګه کولی شئ د بې نظمۍ مخنیوی وکړئ. له ځوابونو ځان مطمین کړئ د لوست موخې ته رسیدلي یاست. | ۵ دقیقې |
| کورني کار | له زده کوونکو وغواړئ چې بیان کړي په عام مجلسونو کې د ګډون کولو په وخت کې کوم نزاکتونه باید مراعات شي. | ۲ دقیقې |

# دیارلسم لوست

وخت : ۴۵ دقیقې

| وخت | د مطلبونو شرح | مطلبونه |
|---|---|---|
| | د مشرانو خبرو ته غوږ نیول | د لوست موضوع |
| | پوهه: زده کوونکي د مشرانو د خبرو د غوږ نیولو په اهمیت پوه شي.<br>مهارت: د مشرانو د خبرو د غوږ نیولو اداب مراعات کړی شي.<br>ذهنیت: د مشرانو د خبرو د اورېدلو او درک کولو څخه د خوشحالی احساس وکړي. | د زده کړې موخې |
| | په ځیر اورېدل، په موضوع پوهېدل | اساسي ټکي |
| | کتابچه، قلم اویوشمیر انځورونه | د لوست مرستندویه توکي |
| | ډله ییزکار، یوکسیزکار، پوښتنه اوځواب، قصه ویل | دتدریس میتود |
| ۵ دقیقې | سلام اچول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضری اخیستل، دکورني کارپوښتنه، له نوي لوست سره د پخواني لوست ارتباط | مقدماتي فعالیتونه |

| وخت | فعالیتونه | مطلبونه |
|---|---|---|
| ۷ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د لوست اساسي مفهومونه په ساده ژبه بیان کړئ چې په موضوع پوه شي، عنوان د تختې پرمخ ولیکئ او له هغوی څخه د (وواياست) انګېزوي پوښتنې وکړئ. ښايي افاقي ځوابونه وړاندې کړي چې د نوي لوست لپاره سریزه وي. | ورودي څرګندونه |
| ۲۰ دقیقې | – ښاغلی ښوونکی، د ټاکل شوو ډلو څخه وغواړئ چې انځورونه وګوري او په هکله يې نظر ورکړي، د ډلې له مشورې وروسته استازي د هغوی نظریې نورو ته ووايي او د ګروپونو سره نظرونه تبادله کړي.<br>– د زده کوونکو پام د (غوږ ونيسئ او ووایاست) عنوان راواړوئ، په لوړ غږ يې ولولئ، له هغوی وغواړئ په ځير غوږ ونيسي په هغه څه چې پوهيږي لاس پورته کړي او نوبت ونيسي او په خپله ژبه يې بیان کړي. هغه ټکي چې د يادونې وړ دي تکرار کړي چې ښه پوه شي.<br>– له زده کوونکو څخه وغواړئ په شپږ کسيزه ډلو کې د مشرانو د خبرو د اورېدلو اهمیت د نه اورېدلو د زیان په هکله یو له بل سره خبرې وکړي. وروسته له نورو زده کوونکو سره نظرونه تبادله کړي، هغوی تشویق کړئ او د هغوی د وينا عمده ټکي لا روښانه کړي. | د لوست ورکول |
| ۸ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، له زده کوونکو وغواړئ په انفرادي توګه د ۲۶ مخ انځورونو ته ځیر شي او د انځورونو اړیکې پيداکړي او خپل دليلونه ووايي. ښايي د هغوی د وینا په وړاندې کولو لوست تحکیم ومومي. | د لوست تحکیم |
| ۵ دقیقې | د لوست د پای پوښتنې مطرح کړئ چې هغوی د مشرانو د خبرو د اورېدو اهمیت او اړتیا ته متوجه او هغه عملي کړي چې د لوست موخې ترلاسه شي. | ارزونه |
| ۲ دقیقې | د مشرانو د خبرو له اورېدو درې ګټې او د خبرو د نه اورېدلو درې زیانونه په اړه د کورني غرو سره خبرې اترې وکړئ. | کورنی کار |

# څوارلسم لوست

وخت : ۴۵ دقیقې

| وخت | د مطلبونو شرح | مطلبونه |
|---|---|---|
| | ترافیکي اشارې | د لوست موضوع |
| | پوهه: زده کوونکي باید ځینې ترافیکي علامو او قاعدو باندې پوه شي.<br>مهارت: د ترافیکې قاعدې څخه پیروي وکړی شي.<br>ذهنیت: د ترافیکي قاعدې اهمیت درک کړی شي. | د زده کړې موخې |
| | د ترافیکي قاعدې او نښو درک کول او د هغوی پیروي کول | اساسي ټکي |
| | کتابچه، قلم اود یوشمېر ترافیکي نښو انځورونه | د لوست مرستندویه توکي |
| | ډله ییزکار، یوکسیزکار، پوښتنه اوځواب | دتدریس میتود |
| ۵ دقیقې | سلام اچول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، دکورني کارپوښتنه، له نوي لوست سره د پخواني لوست ارتباط | مقدماتي فعالیتونه |

| مطلبونه | فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| ورودي څرګندونه | ښاغلی ښوونکی، د لوست اساسي مفهومونه په ساده ژبه بیان کړئ چې د لوست موضوع سره اشنا شي. بیا د (وواياست) انګېزوي پوښتنې مطرح کړئ ښايي د هغوی افاقي ځوابونه سم نه وي. خو هغوی تشویق کړئ او عنوان د تختې پرمخ ولیکئ او نوي لوست ته وردننه شئ. | ۷ دقیقې |
| د لوست ورکول | - ښاغلی ښوونکی، ټاکل شوو ډلو ته دنده ورکړئ څو انځورونه په ځیر وګوري او خپلې نظریې سره شریکې کړي. بیا د هرې ډلې استازی د ډلې نظریې ټولې کړي او نورو ته یې په لوړ غږ ووایي او خپلو کې د نظرونو تبادله وکړي.<br>- د لوست متن په لوړ غږ ولولئ او له زده کوونکو وغواړئ چې په ځیر غوږ ونیسي، وروسته بیا په هر څه چې پوه شوي دي په ساده ژبه یې بیان کړي. څو زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې د لوست مهم ټکي تکرار او لا روښانه کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو وویشئ او له هغوی وغواړئ چې ځینې ترافیکي علامو او قاعدو باندې چې پوهیږي، په خپلو کې بحث وکړي او خپلې نظریې شریکې کړي، بیا نورو ډلو سره د نظرونو تبادله وکړي. | ۲۰ دقیقې |
| د لوست تحکیم | ښاغلی ښوونکی، له زده کوونکو وغواړئ چې د ۲۸ مخ انځورونه په ځیر وګوري او د هغوی د مفهوم په هکله فکر وکړي، نوبت ونیسي او نورو ته معلومات ورکړي چې د لوست موضوع نور تحکیم هم ومومي. | ۸ دقیقې |
| ارزونه | ښاغلی ښوونکی، د موخو د ترلاسه کولو لپاره له زده کوونکو وغواړئ چې پوښتنو ته ځواب ورکړي چې په څه ډول ځان ساتنه کوي. د عمومي سړکونو څخه د تېرېدو په وخت کې کومې قاعدې مراعاتوي. | ۵ دقیقې |
| کورنی کار | د ترافیکي قاعدو د رعایت کولو اهمیت او د ترافیکي علامو د پېژندنې په هکله خپلو دوستانه ته تشریح کړئ. | ۲ دقیقې |

# پنځلسم لوست

وخت : ۴۵ دقیقې

| مطلبونه | د مطلبونو شرح | وخت |
| --- | --- | --- |
| د لوست موضوع | سوله ییز ژوند | |
| د زده کړې موخې | پوهه: زده کوونکي سوله ییزه تګلاره باندې پوه شي.<br>مهارت: د نېکو اړیکو؛ لکه: ملګرتیا، همکارۍ، درناوي او رښتینولۍ څخه په ورځني ژوند کې کار واخېستی شي.<br>ذهنیت: د سوله ییز ژوند د تأمین څخه د خوښۍ احساس وکړي. | |
| اساسي ټکي | سوله (ملګرتیا، همکاري، درناوی، رښتینولي، صبر او حوصله) | |
| د لوست مرستندویه توکي | ځینې انځورونه چې د سولې فضا ښکاره کوي | |
| دتدریس میتود | ډله ییزکار، یوکسیزکار، پوښتنه او ځواب | |
| مقدماتي فعالیتونه | سلام اچول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، دکورني کارپوښتنه، له نوي لوست سره د پخواني لوست ارتباط | ۵ دقیقې |

| مطلبونه | فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| ورودي څرګندونه | ښاغلی ښوونکی، د لوست اساسي ټکي په ساده ژبه بیان کړئ چې زده کوونکي د لوست پر موضوع پوه شي او عنوان پر تخته ولیکئ. د (وواياست) انګېزوي پوښتنې مطرح کړئ. د زده کوونکو آفاقي ځوابونه به د نوي لوست لپاره ښه سریزه وي. | ۷ دقیقې |
| د لوست ورکول | ښاغلی ښوونکی ډلې تنظیم کړئ او هغوی ته دنده ورکړئ چې د ۲۹ مخ انځورونو ته په ځیر وګوري. هر څه چې وینې او پوهېږي یو او بل سره پرې تصبره وکړي او نظر وړاندې کړي. بیا د ډلې استازی خپلې نظریې په لوړ غږ بیان کړي او نورو ډلو سره د نظر تبادله وکړي.<br>- د لوست متن د (غوږ ونیسئ او وواياست) سرلیک په لوړ غږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په ځیر غوږ ونیسي او بیا ووايي چې څه یې زده کړي دي. عمده ټکي یې په ساده توګه بیان کړئ چې زده کوونکي عادت واخلي.<br>- زده کوونکي تشویق کړئ چې په تمثیل کې برخه واخلي. درې یا څلور کسیزې ډلې جوړې کړئ چې د ټولګي پر وړاندې د دوو ملګرو چې د یو او بل څخه مرور وي، رول ولوبوي چې په څه ډول یو بل سره پخلا کېږي. د ملګرتیا او سولې فضا منځته راولي او نور زده کوونکي د تمثیلي ټوټې پایلې بیان کړي. | ۲۰ دقیقې |
| د لوست تحکیم | ښاغلی ښوونکی، له زده کوونکو وغواړئ چې د کتاب د ۳۰ مخ انځورونه وګوري. رسمونو ته په سوله ییز ډول یو او بل سره اړیکه ورکړي. خپل دلیل بیان کړي او هم ووای چې د یو سوله ییز ژوند پرمخ بیولو لپاره کومې طریقې وټاکي. | ۸ دقیقې |
| ارزونه | د لوست د پای پوښتنې مطرح کړئ چې زده کوونکي د ښه ژوند لپاره سوله ییزه تګلاره بیان کړي او په ژوند کې د ښې او خرابې کړنې اغېزې درک کړي. ښه والي ته مخه وکړي او له بدیو څخه ځان وساتي، په دې توګه د لوست موخه ترسره کېږي. | ۵ دقیقې |
| کورنی کار | د سوله ییز ژوند د اهمیت په هکله نورو ته خبرې وکړئ. | ۲ دقیقې |

# شپاړسم لوست

۳۲-۳۱ مخ

وخت : ۴۵ دقیقې

| مطلبونه | د مطلبونو شرح | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | د اختلافونو حل | |
| د زده کړې موخې | پوهه: زده کوونکي به د اختلافاتو د حل د لارې د پیداکولو لپاره د مشورې په اهمیت پوه شي.<br>مهارت: د یوې ستونزې او اختلاف د حل لپاره له یو بل سره مشوره وکړای شي.<br>ذهنیت: د اختلافاتو دحل په برخه کې د خبرو اترو له ښو نتیجو څخه دخوښۍ احساس وکړي. | |
| اساسي ټکي | دیوې ستونزې اودنظر د اختلاف دحل لپاره دمشورې اومفاهمې اهمیت | |
| د لوست مرستندویه توکي | کتابچه، قلم اویوشمیر انځورونه | |
| دتدریس میتود | ډله ییزکار، یوکسیزکار، پوښتنه او ځواب او مشاهده | |
| مقدماتي فعالیتونه | سلام اچول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، دکورني کارپوښتنه، له نوي لوست سره د پخواني لوست ارتباط | ۵ دقیقې |

| وخت | فعالیتونه | مطلبونه |
|---|---|---|
| ۷ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، دلوست مهم ټکي زده کوونکوته وواياست چې هغوی دلوست مفاهيمو ته دننه شي. له هغوی څخه د (وواياست) پوښتنې مطرح کړئ.کیدای شي دهغوی افاقي ځوابونه چې د هغوی د پخواني پوهې څرګندونه کوي د نوي لوست لپاره ښه مقدمه وي. | ورودي څرګندونه |
| ۲۰ دقیقې | - ښاغلی ښوونکی، له تنظيم شوي ګروپ څخه وغواړئ چې د ۳۱ مخ انځورونوته پاملرنه وکړي. له يو بل سره مشوره او تبصره وکړي. وروسته د ګروپ استازی د خپل ګروپ نظر نورو ته په لوړ غږ وايي او ګروپونه له يو بل سره د نظر تبادله وکړي.<br>- د لوست متن په لوړ غږ ولولئ له زده کوونکو وغواړئ چې سم غوږ ونيسي. وروسته هغه څه چې پرې پوه شويدي په ساده ژبه يې ووايي.<br>د اختلافاتو د حل او د بدو خبرو د ويلو د مخنيوي په هکله د مشورو په برخه کې ورته زيا ت معلومات ورکړئ.<br>ګروپونه جوړ کړئ له هغوی څخه وغواړئ چې د اختلافاتو دحل دلاسته راوړلو په هکله دلارو چارو په باره کې له يوبل سره مشوره وکړي وروسته دخپل کار نتيجه بيان کړي اوله نوروسره د نظرتبادله وکړي. | د لوست ورکول |
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، له زده کوونکو وغواړئ چې دکتاب ۳۲ مخ انځور په انفرادي ډول په سمه توګه ووينې، توپير اوارتباط يې پيدا کړي چې هر يو ژر په موضوع پوه شي او ځواب ورکړي. هغوی د لومړي، دويم او دريم نمبر په توګه وهڅوئ څکه چې د هغوی د هريو د نظر تبادله د لوست د تحکيم سبب کيږي. | د لوست تحکیم |
| ۵دقیقې | دلوست دوروستيو سوالونو پوښتنه وکړئ چې هغوی ځواب ورکړي اوپوه شي چې د يو مشکل دحل لپاره له چاسره مشوره وکړي او د خبرو اترو په وخت کې کوم ټکي مراعات کړي چې داختلاف دحل سبب شي. په دې ډول د لوست مخې ترلاسه کيږي. | ارزونه |
| ۳ دقیقې | داختلافاتو د حل د پيداکولو لپاره د مشورې د اهميت په هکله د خپل کورنۍ غړو سر خبرې وکړئ. | کورنی کار |

# اوولسم لوست

۳۳-۳۴ مخ

وخت : ۴۵دقیقې

| وخت | د مطلبونو شرح | مطلبونه |
|---|---|---|
| | ښښنه غوښتل | دلوست موضوع |
| | پوهه: زده کوونکي به خپګان دله منځه وړلو لپاره د ښښنې غوښتلو په اهمیت او مفهوم پوه شي.<br>مهارت: عملا ښښنه وغوښتلای شي.<br>ذهنیت: د عذر کولو اوبښلو له ښیګنو څخه به دخوښی احساس وکړي. | د زده کړې موخې |
| | د ښښنې غوښتلو میتودونه، د ښلو ښیګنې، د ځینو خپګانونو له منځه وړل | اساسي ټکي |
| | کتابچه، قلم اویوشمیر انځورونه | د لوست مرستندویه توکي |
| | ډله ییزکار، یوکسیزکار، پوښتنه او ځواب او تمثیل | دتدریس میتود |
| ۵ دقیقې | سلام اچول، احوال پوښتنه، دټولګي تنظیم، دحاضری اخیستل، دکورني کارپوښتنه، له نوي لوست سره دپخواني لوست ارتباط | مقدماتي فعالیتونه |

| مطلبونه | فعالیتونه | وخت |
| --- | --- | --- |
| ورودي څرګندونه | ښاغلی ښوونکی، د لوست مفاهیم په ساده ژبه وواياست چې هغوی د لوست عمده مفهومونو سره بلد شي. د (وواياست) پوښتنې مطرح کړئ. زده کوونکي ځوابونه ورکوي کیدای شي چې دلوست په اړه خپله پخوانی پوهه بیان کړي چې نوي لوست ته دداخیلیدو لپاره ښه سریزه وي. | ۷ دقیقې |
| د لوست ورکول | – ښاغلی ښوونکی، د ټاکل شوي ګروپ له زده کوونکو وغواړئ چې د ۳۵ مخ انځورونو ته پاملرنه وکړي<br>له هغوی وغواړئ چې ښه پاملرنه وکړي اوخپله اخیستنه بیان کړي.<br>– د ګروپ استازی د خپل ګروپ نظریې نورو ته په لوړ غږ بیانوي او د نظریوتبادله کوي.<br>– د لوست متن په لو ړ غږ ولولئ له زده کوونکووغواړئ چې ښه غوږ ونیسي .وروسته له دې هغه مفهمو چې دوی درک کړی دی په ساده ژبه یې بیان کړي اوتاسو کولای شئ چې نور مثالونه هم بیان کړئ.<br>– شپږکسیزه ګروپونه جوړ کړئ او له هغو څخه وغواړئ چې د عذر کولو او بخشش غوښتلو د اهمیت په هکله سره بحث وکړي او د مهم ټکو په هکله د نظر تبادله وکړي. | ۲۰ دقیقې |
| د لوست تحکیم | ښاغلی ښوونکی، له زده کوونکو وغواړئ چې ترتیب شوې کلمې ولولي او ښه فکر وکړي چې کومه یوه د سم کار د چوکاټ سره اوکومه یوه د ناسم چوکاټ سره اړیکه لري.<br>د هغوی دلایل دې هم پیدا کړي د تشریح لپاره دې وار ونیسي.<br>هغوی وهڅوئ چې د لوست د تحکیم لپاره کلمې ته په کاغذ یا پرتختې ترتیب کړي. | ۵ دقیقې |
| ارزونه | د لوست د وروستیو سوالونو پوښتنه وکړئ چې هغوی ځواب ورکړي اوپوه شي چې هیڅ انسان له سهوې څخه خالي نه دی. ولې انسان تل رښتیا ووایي او بخشش وغواړي او د ښنلو او بخشش غوښتلو اغیزې په خپل ژوند کې احساس کړي او تا سو موخې ته درسیدو په برخه کې ډاډ ترلاسه کړئ. | ۵ دقیقې |
| کورنی کار | له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د عذر غوښتلو او ښښې د اهمیت هغه څه چې زده کري دي نور خلک هم پوه کړی. | ۳ دقیقې |

# اتلسم لوست

۳۶-۳۵ مخ

وخت : ۴۵دقیقې

| مطلبونه | د مطلبونو شرح | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | په ټولنیزو کارونو کې برخه اخیستل | |
| د زده کړې موخې | پوهه: زده کوونکي د ټولنیزو کارونو په اهمیت پوه شي.<br>مهارت: ټولنیز کارونه سرته ورسولی شي.<br>ذهنیت: په ټولنیزو کارونو کې د ونډې له اخیستلو څخه د خوښۍ احساس وکړي. | |
| اساسي ټکي | د ټولنیزو کارونو پېژندل، د ټولنیزوکارونو د سرته رسولو اړتیا او د هغوی اهمیت | |
| دلوست مرستندویه توکي | کتابچه، قلم او یو شمېر انځورونه | |
| د تدریس میتود | ډله ییزکار، یوکسیزکار، پوښتنه اوځواب | |
| مقدماتي فعالیتونه | سلام اچول، احوال پوښتنه، دټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخېستل، د کورني کار پوښتنه، له نوي لوست سره دپخواني لوست ارتباط | ۵ دقیقې |

| مطلبونه | فعالیتونه | وخت |
| --- | --- | --- |
| ورودي څرګندونه | ښاغلی ښوونکی، دلوست مفاهیم زده کوونکوته په ساده ژبه بیان کړئ چې هغوی دلوست په عمده مفاهیمو پوه شي.<br>د (وواياست) انګېزوي پوښتنې مطرح کړئ. چې هغوی افاقي ځوابونه ورکړي کیدای شي چې د هغوی ځوابونه دنوي لوست لپاره یوه ښه مقدمه وي. | ۷ دقیقې |
| د لوست ورکول | - ښاغلی ښوونکی، له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د ۳۵ مخ انځورونو ته وګوري او خپل برداشت بیان کړي.<br>دګروپ استازی دې د خپل ګروپ نظر نورو ته په لوړ غږ ووایي او خپل نظرونه دې تبادله کړي.<br>د (غوږ ونیسه اووایه) تر سرلیک لاندې د لوست متن په لوړ غږ ووایاست او له زده کوونکو وغواړئ چې ورته غوږ ونیسي او وروسته د هغه څه مفهوم چې ورباندې پوهیدلې دې بیان کړي. او له هغوی وغواړئ که په دې هکله یې کومه کیسه زده وي ویې وا یې. او ووایي چې په ټولنیزو کارونوکې ونډه اخیستل څه ګټه لري؟<br>له زده کوونکو وغواړئ چې ښه فکر وکړي او مناسب ځوابونه پیداکړي. په ښوونځي، ټولګي او هغه سیمه کې چې ژوند کوي د کومو کارونو ترسره کول خپله دنده بولي چې سیمه یې پاکه او صمیمي خلك وي. همدارنګه ووایي چې په ټولنیزو کارونو کې د ونډې اخیستلو اهمیت او اړتیا څه شی ده؟ | ۲۰ دقیقې |
| د لوست تحکیم | ښاغلی ښوونکی، له زده کوونکو وغواړئ چې د کتاب ۳۶ مخ انځورونه په سمه توګه ووینې، هر ارتباط او دلیل یې پیدا کړي وار ونیسي او نوروته یې ووایي چې په دې هکله د نظرتبادله وشي او لوست تحکیم ومومي او دغه راز پوه شي چې په ټولنیزو کارونو کې ونډه اخیستل د شخص لپاره ارزښت او اهمیت لري. | ۵ دقیقې |
| ارزونه | ښاغلی ښوونکی د لوست دوروستیو سوالونو پوښتنه وکړئ چې هغوی ځواب ورکړي چې ټولنیز کارونه  څه شی دي؟<br>او ولې په کې ونډه واخلو اوڅه اهمیت لري؟<br>د هغوی له ځوابونو څخه ډاډ ترلاسه کړئ چې ایا د لوست موخې ته رسیدلي یاست که نه؟ | ۵ دقیقې |
| کورنی کار | زده کوونکي دې په ټولنیزو کارونوکې د ونډې اخیستلو د اهمیت او اړتیا په هکله د خپلې کورنی غړه سر خبرې وکړئ. | ۳ دقیقې |

# نوولسم لوست

۳۸-۳۷ مخ

وخت : ۴۵دقيقې

| مطلبونه | د مطلبونو شرح | وخت |
|---|---|---|
| دلوست موضوع | د لويانو درناوی | |
| دزده کړې موخې | پوهه: زده کوونکي بايد دلويانوددرناوي په ميتودونو پوه شي.<br>مهارت: په عملي توګه د لويانو درناوی وکړای شي.<br>ذهنيت دلويانو د درناوي اهميت درک کړي. | |
| اساسي ټکي | د درناوي کولو په ميتودونو پوهيدل، د ميتودونو عملي کول | |
| د لوست مرستندويه توکي | کتابچه، قلم او يوشمېر نور انځورونه | |
| دتدريس ميتود | سوال او ځواب، لوستل، ډله ييز او يو کسيزکار | |
| مقدماتي فعاليتونه | سلام اچول، احوال پوښتنه، دټولګي تنظيم، د حاضرۍ اخېستل، د کورني کار پوښتنه، له نوي لوست سره د پخواني لوست ارتباط | ۵ دقيقې |

| مطلبونه | فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| ورودي څرګندونه | ښاغلی ښوونکی، دلوست مفاهیم زده کوونکوته په ساده ژبه بیان کړئ چې زده کوونکي د لوست په موضوع پوه شي او له هغوی څخه د (وواياست) انګیزوي پوښتنې مطرح کړئ.هغوی له خپلې پخوانۍ پوهې څخه افاقي ځوابونه ورکوي. کیدای شي د هغوی افاقي ځوابونه دلوست لپاره ښه مقدمه وي. د ځوابونو له منځ څخه د لوست سرلیک پیدا او په تختې یې ولیکي. | ۷دقیقې |
| دلوست ورکول | - ښاغلی ښوونکی، له ګروپونو څخه وغواړئ چې د ۳۷ مخ انځورونو ته پاملرنه وکړي. هر یو نظر ورکړي چې څه شيویني. وروسته د ګروپ استازی د خپل ګروپ د غړو نظرونه راټولوي او نورو ته یې وايي او له نورو ګروپونو سره د نظر تبادله کوي، کوښښ وکړئ چې دلوست عمده مفاهیم ورته بیان کړئ. - د لوست متن په لوړ غږ ولولئ له زده کوونکو وغواړئ چې سم غوږ ونیسي. په څه شي چې پوه شوي دي په وارسره د لوست مفهوم په ساده ژبه بیان کړي. تاسوهم عمده مفاهیم تکراراوپه ساده ژبه هغوی پوه کړئ. - له هرګروپ څخه وغواړئ چې د لویانو په وړاندې د درناوي د درې میتودونو نومونه واخلي په مشوره سره دهغوپه هکله څه شی ولیکي اونوروته یې ووایي. د وخت دکموالي له امله څو ډلوته وخت ورکړئ اوټول وهڅوئ. | ۲۰دقیقې |
| دلوست تحکیم | ښاغلی ښوونکی، له زده کوونکو وغواړئ چې دکتاب ۳۸ انځور په سمه توګه ووینې هر یو دې د انځورونو په هکله خپل نظرونه چې د لویانو په مقابل کې درناوی څرګندوي او یا د هغې برعکس بیانوي بیان کړي وخت دې واخلي او نورو ته دې تشریح کړي. | ۵ دقیقې |
| ارزونه | ښاغلی ښوونکی، د موخې د سرته رسیدو په خاطر له زده کوونکو څخه وغواړئ چې پوښتنو ته ځواب ورکړي او دا دلیل چې ولې لویانو ته درناوی وشي ووايي او د درناوي کولو اهمیت بیان کړي. | ۵ دقیقې |
| کورنی کار | د لویانو د درناوي په هکله له میندو او پلرونو سره خبرې وکړئ او نتیجه یې واخلې. | ۳دقیقې |

# شلم لوست

۳۸-۳۷ مخ

وخت : ۴۵دقیقې

| مطلبونه | د مطلبونو شرح | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | په حیواناتوترحم کول | |
| د زده کړې موخې | پوهه: زده کوونکي باید په حیواناتو باندې د ترحم کولو په میتودونو باندې پوه شي.<br>مهارت: دخپل ماحول په حیواناتو باندې عملا ترحم وکړای شي.<br>ذهنیت: په حیواناتو باندې د ترحم کولو په خاطر د خوښۍ احساس وکړي. | |
| اساسي ټکي | په حیواناتو شفقت او ترحم، هغوی ته زیان نه رسول او هغوی ته خوراك او اوبه برابرول | |
| د لوست مرستندویه توکي | انځورونه، کتابچه او قلم او ځینې کیسې | |
| دتدریس میتود | ډله ییزاویوکسیزکار، پوښتنه اوځواب | |
| مقدماتي فعالیتونه | سلام اچول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضری اخیستل، د کورني کار پوښتنه، له نوي لوست سره د پخواني لوست ارتباط | ۵ دقیقې |

| وخت | فعالیتونه | مطلبونه |
|---|---|---|
| ۷ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، دلوست مفاهیم زده کوونکوته په ساده ژبه بیان کړئ چې هغوی د لوست موضوع ته متوجه شي او دا په ذهن کې راولي چې په خپل ماحول کې یې څو ډوله حیوانات لیدلې دي.<br>او له هغوی څخه د (وواياست) انګیزوي پوښتنې مطرح کړئ چې هغه حیوانات چې هغوی لیدلي او هغه پیژني نوم یې واخلي او له حیواناتو سره د خپل چلند په هکله خبرې وکړي او تاسو د هغوی ځوابونه له لوست سره ارتباط ورکړئ او د لوست سرلیک پرتختې ولیکئ. | ورودي څرګندونه |
| ۲۰ دقیقې | - ښاغلی ښوونکی، له ګروپونو څخه وغواړئ چې د ۳۹ مخ انځورونو ته پاملرنه وکړي. هر یو نظر ورکړي.<br>- د ګروپ استازی د خپل ګروپ د غړو نظرونه په لوړ غږ وايي او له نورو سره د نظر تبادله وکړي.<br>- د لوست متن په لوړ اوز ولولئ له زده کوونکو وغواړئ چې سم غوږ ونیسي او په هغو شیانو چې پوهیږي په ساده ژبه یې بیان کړي او ځیني خپل د سترګو لیدلی حال د حیواناتو په هکله بیان کړي او تاسو په دې هکله مهم ټکي او نور مثالونه بیان کړئ.<br>- ټول زده کوونکي په ۴ ډلو وویشئ دوه ډلې دې پرحیواناتو باندې د ترحم کولو په طریقو او ګټو په هکله نظر ورکړي او دوو نورو ډلو ته دنده ورکړئ چې له حیواناتوسره د ناسم حرکت په هکله کار وکړي او وروسته د نظر تبادله وکړي او نتیجه ترلاسه کړي. د قناعت وړ نتیجه هغوی ته بیان کړئ. | د لوست ورکول |
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، زده کوونکو ته دنده ورکړئ چې د کتاب ۳۹ مخ انځور په سمه توګه ووینې. ارتباط اودلایل یې پیداکړي زده کوونکي په وارسره ۳-۲-۱ نمبر وهڅوئ. کوښښ وکړئ چې زیاتره زده کوونکي ځواب ورکړي چې د لوست تحکیم ترسره شي. | د لوست تحکیم |
| ۵ دقیقې | پوښتنې وکړئ چې پر حیواناتو باندې د ترحم په هکله د یو بل په ځوابونو پوه شي او هم خپل ځانونه د وحشي او ناروغو حیواناتوله زیان څخه وساتي. | ارزونه |
| ۳ دقیقې | یوکورنی یا وحشي حیوان چې تاسو پیژنئ انځور یې رسم کړئ او هغه رنګه کړئ. | کورنی کار |

# یوویشتم لوست

۴۲-۴۱مخ

وخت : ۴۵ دقیقې

| مطلبونه | د مطلبونو شرح | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | خیر خواهی | |
| د زده کړې موخې | پوهه: زده کوونکي باید د خیر رسولو په اهمیت پوه شي.<br>مهارت: هیڅکله بدبین نه اوسي، خپل او د نورو خیر وغواړي.<br>ذهنیت: د خیر رسولو له صفت څخه په خپله د خوښۍ احساس وکړي. | |
| اساسي ټکي | د خیر رسولو په میتودونو او د هغه په اهمیت پوهیدل، په ځان کې د خیر رسولو د صفت پیداکول | |
| د لوست مرستندویه توکي | کتابچه، قلم او یو شمېر نور انځورونه | |
| د تدریس مېتود | سوال اوځواب، لوستل، ډله ییز او یوکسیزکار | |
| مقدماتي فعالیتونه | سلام اچول، احوال پوښتنه، دټولګي تنظیم، دحاضرۍ اخیستل، دکورني کار پوښتنه، له نوي لوست سره دپخواني لوست ارتباط | ۵ دقیقې |

| وخت | فعالیتونه | مطلبونه |
|---|---|---|
| ۷ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د لوست مفهوم زده کوونکوته په ساده ژبه بیان کړئ چې زده کوونکي د لوست په موضوع پوه شي وروسته له هغوی څخه د (وواياست) انگيزوي پوښتنې مطرح کړئ. کیدای شي د هغوی افاقي ځوابونه بیخي سم نه وي، خو لږ څه روښنايي پرې واچوئ د هغو دځ وابونو له منځ څخه د لوست سرليك راوباسئ او پرتختې يې وليکئ. | ورودي ځرگندونه |
| ۲۰ دقیقې | - ښاغلی ښوونکی، د زده کوونکو له گروپونو څخه وغواړئ چې د۴۱ مخ انځورونو ته پاملرنه وکړي. د يو بل په مشوره سره د هر يو په هکله نظر ورکړي.<br>د ډلو استازي نظرونه راښولوي په وارسره يې نوروته وړاندې کوي او وروسته د نظرتبادله کوي.<br>- د لوست متن په لوړ غږ ولولئ اوله زده کوونکو څخه وغواړئ چې سم ورته غوږ ونيسي. او وروسته په هغه څه چې پوهيږي نورو ته دې په ساده ژبه ووايي. څو کسانوته وخت ورکړئ. وروسته تاسو هم لږ څه روښنايي واچوئ چې ښه پوه شي.<br>- زده کوونکي په څو ډلو وويشئ  وروسته له هغو څخه وغواړئ چې په مشوره سره د خير رسوونکي شخص صفتونه لست کړي او وروسته خپله ووايي چې څرنگه له دغوصفتونو څخه پيروي وكړي. | د لوست ورکول |
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په دې فعاليت کې د کلمو جدول له ځان سره وليکي د خير رسولو او زيان رسولو صفتونه لست کړي او په خپله کتابچه کې يې وليکي او وروسته يې په وار سره نورو ته ووايي او په هکله يې تبصره او خپل دليل هم ووايي چې لوست تحکيم ومومي. | د لوست تحکیم |
| ۵ دقیقې | د لوست د سرته رسيدو د ډاډ په خاطر له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړئ چې هغو ځوابونه ووايي له ديني پلوه د خير رسولو په هکله او د خير رسوونکي شخص د گرانښت دليل په هکله مثالونه ورکړئ. | ارزونه |
| ۳ دقیقې | له زده کوونکو وغواړئ چې د خير رسولو د گټو په هکله مور او پلار سره خبرې وکړی. | کورنی کار |

# دوه ویشتم لوست

۴۴-۴۳ مخ

وخت : ۴۵ دقیقې

| مطلبونه | د مطلبونو شرح | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | له ناسمو کارونو لیري والی | |
| د زده کړې موخې | پوهه: زده کوونکي باید ناوړو کارونوپه زیانو باندې پوه شي.<br>مهارت: ناوړه کارونه ونه کړي.<br>ذهنیت: د ناوړه کارونوپه نه کولو سره ګرانښت ترلاسه کوي. | |
| اساسي ټکي | دناوړه کارونوپیژندل اودهغو په زیانونو پوهیدل | |
| د لوست مرستندویه توکي | یوشمیر انځورونه، د ښو او خرابوکارونویو لست | |
| دتدریس میتود | ډله ییز او یوکسیزکار، پوښتنه اوځواب | |
| مقدماتي فعالیتونه | سلام اچول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، د کورني کارپوښتنه، له نوي لوست سره د پخواني لوست ارتباط | ۵ دقیقې |

| وخت | فعالیتونه | مطلبونه |
|---|---|---|
| ۷ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د لوست عمومي اساسي ټکي زده کوونکو ته په ساده ژبه بیان کړئ چې زده کوونکي د لوست په محتوا پوه شي. د (وواياست) انګیزوي پوښتنې مطرح کړئ چې هر یو د یو ناوړه کار نوم واخلي او تاسو یې پرتختې ولیکئ او وروسته وګورئ چې له یو ناوړه کار څخه د لرې والي په هکله څه وايي؟ | ورودي څرګندونه |
| ۲۰ دقیقې | - ښاغلی ښوونکی، ټاکل شوو ډلوته دنده ورکړئ چې د ۴۳ مخ انځورونه وګوري او د هریو په مقابل کې خپل نظر او برداشت ووایي.<br>وروسته دې د هرې ډلې استازی دې د خپلې ډلې نظریې نورو ته ووایي او د نظرتبادله دې وکړي.<br>- د زده کوونکو پاملرنه د لوست متن ته چې سرلیک یې (غوږ ونیسه او وواياست) دی واړوئ. هغه په لوړ غږ وواياست. له زده کوونکو څخه وغواړئ چې غوږ ونیسي په څه شي چې پوه شول څو تنه دې هغه په ساده ژبه بیان کړي. او تاسو هم ځیني څرګندوني په ساده ژبه بیان کړئ.<br>- د ډلو زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې فکر وکړي د دوو ناوړو عملونو نوم واخلي او د هغو د زیانونو په اړه دې خبرې وکړي. د هغو په مقابل کې دې د دوو نیکو عملونو نوم واخلي او هغه دې بیان کړي په حال او راتلونکي کې دې د هغو د ارزښت په هکله خبرې وکړي. | دلوست ورکول |
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، له زده کوونکو وغواړئ چې د کتاب ۴۴ مخ پرانیزي او انځورونو ته ځیر شي ارتباط او دلیل یې پیداکړئ. هر یو لومړی، دویم او دریم وار ونیسي. هغوی تشویق کړئ. موثق دلایل تکرارکړئ چې د لوست مفاهیم ټینګښت ومومي. | د لوست تحکیم |
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د لوست د وروستیو سوالونو پوښتنه وکړ ئ چې له درس څخه د خپل درک په هکله ځواب ورکړي او دلیل راوړي چې ولې نیک عملونه سرته رسوي او له ناوړه کارونو څخه د لرې والي لارې هم ووایي او وروسته یې عملي کړي چې ډاډه شي موخې ته رسیدلی دی.<br>د موخې د سرته رسیدو په خاطر له زده کوونکو څخه وغواړئ چې پوښتنوته ځواب ورکړي او دا دلیل چې ولې لویانو ته درناوی وشي ووايي او د درناوي کولو اهمیت بیان کړي. | ارزونه |
| ۳ دقیقې | له زده کوونکو څخه وغواړئ چې درې ښه کارونه او د هغوی ګټې او درې بد کارونه له خپل زیان سره مقایسه کړی. | کورنی کار |

# درویشتم لوست

۴۶-۴۵ مخ

وخت : ۴۵دقیقې

| مطلبونه | د مطلبونو شرح | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | غوصه | |
| د زده کړې موخې | پوهه: زده کوونکي به د غوصې په اسباب اوعواملو پوه شي.<br>مهارت : د قهر له عواملو څخه ځان وژغورلای شي.<br>ذهنیت: دا چې څوک د چا د غوصې لامل نشي د خوښۍ احساس وکړي. | |
| اساسي ټکي | د قهر د اسبابو پيژندل، د یوچا د قهرکیدو له اسبابو څخه ځان ساتل او د قهر په وخت کې د صبر او حوصلې د اهمیت درک کول. | |
| د لوست مرستندویه توکي | یو شمېر انځورونه، د ښو او خرابوکارونو یو لست | |
| د تدریس مېتود | ډله ییزکار، سوال اوځواب اوکیسه | |
| مقدماتي فعالیتونه | سلام اچول، احوال پوښتنه، دټولګي تنظیم، د حاضری اخیستل، د کورني کار پوښتنه، له نوي لوست سره د پخواني لوست ارتباط | ۵ دقیقې |

| وخت | فعالیتونه | مطلبونه |
| --- | --- | --- |
| ۷ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د لوست مفاهیم زده کوونکوته په ساده ژبه بیان کړئ چې زده کوونکي د لوست په مفهوم پوه شي او کوښښ وکړي چې داسې مهارتونه په ځان کې پیاوړي کړي چې تل ګټور وي او د قهر سبب نه شي. د (وواياست) انګیزوي پوښتنې مطرح کړئ چې د انسان د قهر کېدو دلیل وپیژني. او هغه عوامل چې له طبیعي عواملو پرته د قهر سبب کیږي وپیژني، هغه سرته ونه رسوي او په همدې سریزه سره د نوي لوست سرلیک پرتختې ولیکئ. | ورودي څرګندونه |
| ۲۰ دقیقې | - ښاغلی ښوونکی، له ټاکل شوو ډلو وغواړئ چې د ۴۵ مخ انځورونه وګوري هغه څه چې برداشت کوي د ګروپ له غړوسره مشوره وکړي او نظر ورکړي. وروسته دې د ګروپ استازی د خپل ګروپ نظرونه په لوړ غږ ووایي او د نظر تبادله دې وکړي.<br>- د لوست متن په لوړ غږ وواياست زده کوونکو ته وواياست چې ورته غوږ ونیسي وروسته یې په خپله ساده ژبه بیان کړي چې څه مفهوم یې ترلاسه کړی دی. تاسو هم لږ څه روښنایي واچوئ او له هغوی وغواړئ چې څرنګه له هغو اعمالو څخه چې د قهر سبب کیږي ځان وساتي.<br>- له زده کوونکو وغواړئ چې په خپلو ډلو کې مشوره وکړي چې څرنګه او په کومه لاره سره خپل او یا د نورو قهر له منځه وړلای شو، د بېلګې په توګه: په صبرکولو سره، ښکنځلو، فکر، په ژوره توګه ساه ایستلو سره، په چوپ والي سره، له جنګ څخه په ځان ساتلو سره، د ښو مېتودونو او دلایلو په راوړلو سره او وروسته له یو بل سره د نظر تبادله وکړي. | د لوست ورکول |
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، له زده کوونکو وغواړئ چې دغه فعالیت ته پام وکړي کلموته له دغو لومړنیو درې وو چوکاټونو سره ارتباط ورکړي او د ارتباط دلایل هم بیان کړي چې د لوست مفاهیم زیات تحکیم ومومي. د امکان په صورت کې د تختې پرمخ کلمې ترتیب کړئ چې د غوصې په وخت کې څه وکړي او څه ونکړي. | د لوست تحکیم |
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د لوست د وروستیو سوالونو پوښتنه وکړئ چې د قهر سببونه ښه وپیژني او پوه شي چې کله خپله او یا نور په قهر وي څه وکړي او یا دا چې له څه شي ځان وژغوري. | ارزونه |
| ۳ دقیقې | زده کوونکي د قهر د زیانونو په هکله چې په څه شي پوهیږي خپلو دوستانو ته یې قصه کړئ. | کورنی کار |

# څلیرویشتم لوست

۴۷-۴۸ مخ

وخت : ۴۵دقیقې

| وخت | د مطلبونو شرح | مطلبونه |
|---|---|---|
| | ملګرتیا | دلوست موضوع |
| | پوهه: زده کوونکي باید د ملګرتیا په اړتیا او اهمیت پوه شي.<br>مهارت : زده کوونکي باید وکړای شي چې ښه ملګري پیداکړي.<br>ذهنیت:د دوستۍ د ټینګښت په ګټو پوه شي. | د زده کړې موخې |
| | دملګرتیا اړتیا او اهمیت، د ملګري پیدا کول، د ملګرتوپ د ټینګښت ګټې | اساسي ټکي |
| | کتاب، قلم، کتابچه او یو شمېر انځورونه | د لوست مرستندویه توکي |
| | سوال اوځواب، د انځورونولیدل، ډله ییز او یوکسیز فعالیتونه | د تدریس میتود |
| ۵ دقیقې | سلام اچول، احوال پوښتنه، دټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، دکورني کارپوښتنه، له نوي لوست سره د پخواني لوست ارتباط | مقدماتي فعالیتونه |

| وخت | فعالیتونه | مطلبونه |
|---|---|---|
| ۷ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، دلوست مفاهیم زده کوونکوته په ساده ژبه بیان کړئ چې زده کوونکي په اګاهانه ډول نوي لوست ته دننه شي. د (ووایاست) انګیزوي پوښتنې له هغوی څخه وکړئ چې له پخوانی پوهې څخه ځوابونه ورکړي. کېدای شي د هغوی ځوابونه د نوي لوست لپاره ښه سریزه وي. | ورودي څرګندونه |
| ۲۰ دقیقې | - ښاغلی ښوونکی، له پخوانیو ټاکل شوو ډلو وغواړئ چې د ۴۷ مخ انځورونه وګوري خپل نظریات او برداشتونه د ډلې له غړو سره شریک کړي او وروسته د ګروپ استازی د خپل ګروپ نظرونه نورو ته وړاندې کړي او له نورو ډلو سره دنظر تبادله وکړي. - د لوست متن د (غوږ ونیسئ او ووایاست) په لوړ غږ ووایاست له زده کوونکو وغواړئ چې ورته غوږ ونیسي. او هغه څه چې درک کوي نورو ته یې په خپله ساده ژبه بیان کړي. مرسته ورسره وکړئ او عمده مفاهیم یې په ساده ژبه بیان کړئ. - زده کوونکي په ډلو وویشئ او له هغو وغواړئ چې له یو بل سره مشوره وکړي چې کوم ټکي د دوستۍ د ټینګښت او زیاتوالي سبب کیږي او د کومو شیانو نه مراعاتول د دوستۍ د له منځه تللو سبب کیږي او خپګان رامنځته کوي. ډلې دې خپل نظرونه او د خپل درک نتیجې بیان کړي او د نظر تبادله دې وکړي. | د لوست ورکول |
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د لوست د ټینګښت په خاطر له زده کوونکو وغواړئ چې په یوکسیز ډول دکتاب ۴۸ مخ انځورونه په ځیر سره وګوري د دوستي د ساتلو طریقې او هغه چې دوستي له منځه وړي سره جلا کړي او دلیل دې هم بیان کړي. | دلوست تحکیم |
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د لوست موخې ته د رسېدو په خاطر د لوست د وروستیو سوالونو پوښتنه وکړئ چې د دوستۍ اړتیا او اهمیت بیان کړي او پخپله ووایي چې د خپلو ملګرو سره د دوستۍ د ساتلو په خاطر یې څه کړي دي. | ارزونه |
| ۳ دقیقې | د دوستۍ د اړتیا او د صمیمي ملګري د لرلو په هکله هر څه چې پوهیږئ خپلو والدینو سره ی شریک کړئ. | کورنی کار |

# پنځه ویشتم لوست

۴۹-۵۰ مخ

وخت : ۴۵ دقیقې

| مطلبونه | د مطلبونو شرح | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | له نورو سره همدردي | |
| د زده کړې موخې | پوهه: زده کوونکي باید له نورو سره د همدردۍ په لاروچارو پوه شي.<br>مهارت: زده کوونکي باید له نورو سره عملا همدردي وکړي.<br>ذهنیت: له نورو سره د همدردۍ کولو اهمیت درک کړي. | |
| اساسي ټکي | د همدردۍ کولو لارې، د هغې د اهمیت درک | |
| د لوست مرستندویه توکي | کتاب، قلم، کتابچه او یوشمیر انځورونه او کیسې | |
| دتدریس میتود | سوال او ځواب، د انځورونولیدل، لوستل، ډله ییز او یوکسیز فعالیتونه | |
| مقدماتي فعالیتونه | سلام اچول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، د کورني کار پوښتنه، له نوي لوست سره د پخواني لوست ارتباط | ۵ دقیقې |

| مطلبونه | فعالیتونه | وخت |
| --- | --- | --- |
| ورودي څرګندونه | ښاغلی ښوونکی، دلوست مفاهیم په ساده ژبه بیان کړئ چې زده کوونکي د لوست په موضوع پوه شي.<br>د (ووایاست) انګیزوي پوښتنې له هغو څخه وکړئ کېدای شي د هغوی افاقي ځوابونه د لوست لپاره ښه سریزه وي. | ۷ دقیقې |
| د لوست ورکول | - ښاغلی ښوونکی، د زده کوونکو له پخوانیو ټاکل شوو ډلو وغواړئ چې د ۴۹ مخ انځورونه وګوري او خپل نظریات او برداشتونه د ډلې له غړو سره شریک کړي او وروسته د ګروپ استازی د خپل ګروپ نظرونه راټولوي، وار نیسي او په لوړ غږ یې وایي او له نورو سره د نظر تبادله وکړي.<br>- د لوست متن د (غوږ ونیسئ او ووایاست) تر عنوان لاندې په لوړ غږ وواياست له زده کوونکو وغواړئ چې ورته غوږ ونیسي او هغه څه چې درک کوي نورو ته دې په خپله ساده ژبه بیان کړي.تاسو هغوی وهڅوئ او د یادولو ټکي بیا ورته په ساده ژبه بیان کړئ چې ښه پوه شي.<br>- زده کوونکي په ډلو وویشئ او له هغو وغواړئ چې د زوریدلو خلکو سره د همدردۍ د کولو په هکله څو کرښې ولیکي. وروسته دې په وار سره په لوړ غږ ولولي. د خپلې ډلې نظریې دې د بلې ډلې له نظریو سره پرتله کړي. | ۲۰ دقیقې |
| د لوست تحکیم | ښاغلی ښوونکی، د لوست د ټینګښت په خاطر له زده کوونکو وغواړئ چې په یوکسیز ډول د کتاب ۵۰ مخ انځورونه په ځیر سره وګوري او ووایي چې د هر انځور وګړي کوم ډول همدردۍ ته اړتیا لري. هر یو دې وار ونیسي او د هر انځور په هکله دې خپل نظر بیان کړي. | ۵ دقیقې |
| ارزونه | ښاغلی ښوونکی، د لوست د پای پوښتنې مطرح وکړئ چې هغوی له دردېدلو او اړو کسانو سره د همدردۍ په هکله ځوابونه ورکړي او له نورو سره د همدردۍ کولو اهمیت بیان کړي او د هغوی له ځوابونو سره د لوست موخې ترسره شي. | ۵ دقیقې |
| کورنی کار | له نوروسره د همدردۍ کولو د ګټو په هکله خپلو دوستانو ته خبر وکړئ. | ۳ دقیقې |

# شپږویشتم لوست

۵۲-۵۱ مخ

وخت : ۴۵ دقیقې

| مطلبونه | د مطلبونو شرح | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | د چاپیریال خطرونه | |
| د زده کړې موخې | پوهه: زده کوونکي باید د چاپیریال خطرونه؛ لکه: د موټرګوابش، د هوا، غذا او خاورې په ککړتیا پوه شي.<br>مهارت: د چاپیریال له خطرونو څخه عملاً ځانونه وساتي.<br>ذهنیت: د چاپیریال د خطرونو په مقابل کې د خپل ځان په ساتلو سره د مصونیت احساس وکړي. | |
| اساسي ټکي | د چاپیریال د خطرونو پېژندل، د چاپیریال له خطرونو څخه ځان ساتل | |
| د لوست مرستندویه توکي | کتاب، قلم، کتابچه او یوشمیر انځورونه | |
| د تدریس میتود | پوښتنه او ځواب، ډله ییز او یوکسیز فعالیتونه | |
| مقدماتي فعالیتونه | سلام اچول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، د کورني کار پوښتنه، له نوي لوست سره د پخواني لوست ارتباط | ۵ دقیقې |

| وخت | فعالیتونه | مطلبونه |
|---|---|---|
| ۷ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د لوست اساسي ټکي زده کوونکو ته په ساده ژبه بیان کړئ چې هغوی چاپیریال ته متوجه شي او له اوبو، هوا، خوړو، او موټرو څخه رامنځته شوي خطرونه درک کړي او عملاً ځان وساتي.<br>د (وواياست) انګیزوي پوښتنې مطرح کړئ د هغوی ځوابونه کیدای شي نوي لوست ته د وردننه کیدو لپاره ښه سریزه وي. د هغوی له ځوابونو څخه د لوست سرلیک پرتختې ولیکئ. | ورودي څرګندونه |
| ۲۰ دقیقې | - ښاغلی ښوونکی، له زده کوونکو وغواړئ چې په خپلو ډلوکې انځورونو ته وګوري او هغه څه چې درک کوي د ډلې غړو ته دې ووايي. د ډلې استازی خپل نظریات نورو ته په لوړ غږ وایي او له نورو ډلو سره د نظر تبادله دې وکړي.<br>- د لوست متن په لوړ غږ وواياست له زده کوونکو وغواړئ چې ورته غوږ ونیسي او هغه څه چې يې درک کړي نورو ته يې په خپله ساده ژبه بیان کړي او هغه څه چې لازمه بولئ زیاته توضیح ورکړئ او له هغو څخه وغواړئ چې ووایي په څه ډول له خطرونو ځانونه ساتي.<br>- د زده کوونکو له ډلو وغواړئ چې لومړی د چاپیریال د خطرونو په هکله؛ لکه: د کوڅه ډبو سپیو سره د مخامخ کېدو، او په بازار کې  د غیر صحي خوراکونو او اوبو څخه د کار اخیستلو په وخت کې له خطرونو سره د مخامخ کېدو په هکله خبرې وکړي وروسته د هغو له زیانونو څخه دځان ساتلو په هکله له نورو ډلو سره دنظرتبادله وکړي. | د لوست ورکول |
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، له زده کوونکو وغواړئ چې هریو د کتاب ۵۲ مخ انځورونه وګوري او ووايي چې په هر انځور کې د چاپیریال کوم خطرونه احساس کوي. او له دې خطرونو څخه په څه ډول د ځان ساتنه کوي. هغوی وهڅوئ چې مهم ټکي تکرار کړي. | د لوست تحکیم |
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی، د لوست د پای پوښتنې مطرح کړئ چې د لوست د موخو په ترلاسه کولو باوري شئ چې ایا زده کوونکو د اوبو او غذا د اهمیت، پاکې  او ناپاکې هوا، د هغو د ګټو او زیانونو په هکله قناعت بښوونکي ځوابونه ورکړل او که نه. | ارزونه |
| ۳ دقیقې | هغه خطرونه چې په چاپیریال کې  ورسره مخامخ یاست نوم  یې واخلئ . | کورنی کار |

# اووه ویشتم لوست

۵۴-۵۳ مخ

وخت: ۴۵ دقیقې

| وخت | د مطلبونو شرح | مطلبونه |
|---|---|---|
| | د ماین او ناچاودیدلو موادو خطرونه | د لوست موضوع |
| | پوهه: زده کوونکي باید د ماین، وسلې او ناچاودیدلو موادو خطرونه وپیژني.<br>مهارت: له دې خطرونو څخه عملاً ځانونه وساتي.<br>ذهنیت: د موادو پېژندل او د خپل ځان ساتلو ارزښت درک کړي. | د زده کړې موخې |
| | د ماین، وسلې او ناچاودیدلو موادو څخه راپیداشوي خطرونه، له دې خطرونو څخه د ځان ساتل، په سیمه کې د دغو موادو له شته والي څخه خبر ورکول | اساسي ټکي |
| | کتاب، قلم، کتابچه او د لوبو د سامان یو شمېر انځورونه | د لوست مرستندویه توکي |
| | ډله ییز او یوکسیز کار او پوښتنه او ځواب | د تدریس میتود |
| ۵ دقیقې | سلام اچول، احوال پوښتنه، دټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، د کورني کار پوښتنه، له نوي لوست سره د پخواني لوست ارتباط | مقدماتي فعالیتونه |

| مطلبونه | فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| ورودي څرګندونه | ښاغلی ښوونکی، د لوست مفاهیم زده کوونکو ته په ساده ژبه بیان کړئ چې هغوی د موضوع اهمیت درک کړي او په اګاهانه ډول نوي لوست ته داخل شي.<br>انګیزوي پوښتنې (وواياست) مطرح کړئ چې له خپل پوهې څخه ځوابونه ورکړي. نوي لوست ته د وردننه کېدو لپاره ښه سريزه وي. د هغوی له ځوابونو څخه د لوست سرلیک پرتختې ولیکئ.<br>د هغوی آفاقي ځوابونه کېدای شي سم نه وي خو تاسو ورسره مرسته وکړئ چې نوي لوست ته داخل شي. | ۷ دقیقې |
| دلوست ورکول | – ښاغلی ښوونکی، د زده کوونکو ډلو ته دنده ورکړئ چې انځورونو ته سم وګوري او هر یو خپل نظر ووايي او له یو بل سره د نظر تبادله وکړي.<br>– د لوست متن په لوړ غږ وواياست له زده کوونکو وغواړئ چې ورته غوږ ونیسي وروسته هغه څه چې يې درک کړي نورو ته يې په خپله ساده ژبه بیان کړي د متن په ساده کولو کې ورسره مرسته وکړئ. او له هغو وغواړئ چې له داسې موادو سره د مخامخ کېدو په وخت څرنګه خپل ځان وساتي او چاته خبر ورکړي.<br>– په فعالیت کې (کیسه وکړئ) له زده کوونکو وغواړئ چې د ماین، وسلې او ناچاودیدلو توکو خطرونه بیان کړي او یا که کومه پیښه يې لیدلې وي یا د سترګو لیدلی حال چې له دې توکو څخه خطرونه رامنځته شوي وي نورو ته دې کیسه وکړي چې نورو ته عبرت شي. | ۲۰ دقیقې |
| دلوست تحکیم | ښاغلی ښوونکی، له زده کوونکو وغواړئ چې هر یو دکتاب د ۵۴ مخ انځورونه وګوري. ارتباط او دلایل يې پیدا کړي وروسته يې په وار سره نورو ته بیان کړي. هغوی وهڅوئ چې مهم ټکي تکرار کړي او لوست تحکیم ومومي. | ۵ دقیقې |
| ارزونه | ښاغلی ښوونکی، د لوست د وروستیو سوالونو پوښتنه وکړ ئ.کېدای شي اکثره زده کوونکي د ځواب ورکول وغواړي. څو زده کوونکو ته وار ورکړئ چې ځواب ورکړي او معلومه شي چې لوست څه ډول وړاندې شوی دی او د زده کوونکو احساس څومره بدلون موندلی دی؟ ددې موادو له خطرونو څخه څه ډول د ځان ساتنه وکړای شي. د ځوابونو په ورکولو سره تاسو د لوست د موخو له حاصلولو ځان ډاډه کړئ. | ۵ دقیقې |
| کورنی کار | د ناپیژندل شوو او ناچاودو توکو له خطرونو څخه د ځان ساتلو په هکله هغه څه چه پوهیږئ نور یوه کړئ . | ۳ دقیقې |

# اته ویشتم لوست

۵۶-۵۵ مخ

وخت : ۴۵ دقیقې

| مطلبونه | د مطلبونو شرح | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | شخصي حفظ الصحه | |
| د زده کړې موخې | پوهه: زده کوونکي باید د شخصي حفظ الصحې په اهمیت پوه شي.<br>مهارت: دخپل ځان ساتنه وکړای شي .<br>ذهنیت: د شخصي حفظ الصحې ګټې درک کړای شي. | |
| اساسي ټکي | د شخصي حفظ الصحې لارې، د شخصي حفظ الصحې اهمیت | |
| د لوست مرستندویه توکي | کتاب، قلم، کتابچه، انځورونه او مثالونه | |
| د تدریس میتود | سوال اوځواب، ډله ییز او یوکسیز فعالیتونه، د تصویرونو لیدل | |
| مقدماتي فعالیتونه | سلام اچول، احوال پوښتنه، دټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، د کورني کار پوښتنه، له نوي لوست سره د پخواني لوست ارتباط | ۵ دقیقې |

| مطلبونه | فعالیتونه | وخت |
| --- | --- | --- |
| ورودي څرګندونه | ښاغلی ښوونکی، د لوست مفاهیم زده کوونکو ته په ساده ژبه بیان کړئ چې زده کوونکي د لوست په موضوع پوه شي.<br>انګیزوي پوښتنې (وواياست) له هغو څخه مطرح کړئ چې له پخوانۍ پوهې څخه ورته ځواب ورکړي. کېدای شي د هغو ځوابونه د نوې پوهې لپاره ښه سریزه وي. هغوی وهڅوئ.<br>د هغوی له ځوابونو څخه د لوست سرلیک پرتختې ولیکئ. | ۷ دقیقې |
| د لوست ورکول | - ښاغلی ښوونکی، له زده کوونکو څخه وغواړئ چې دکتاب د۵۵ مخ انځورونو ته وګوري او د ډلې هر غړی خپل نظر نورو ته ووایي.<br>وروسته دې د ډلې استازی نظریات راټول کړي نورو ته دې په لوړ غږ ووايي او له نورو ډلو سره دې د نظر تبادله وکړي.<br>- د لوست متن د (غوږ ونیسئ او ووایاست) تر سرلیک لاندې په لوړ غږ ووایاست له زده کوونکو وغواړئ چې ورته غوږ ونیسي وروسته هغه څه چې يې درک کړي نورو ته يې په خپله ساده ژبه بیان کړي تاسو هم مهم ټکي ورته بیان کړئ او هغوی د شخصي حفظ الصحې لپاره وهڅوئ.<br>- زده کوونکي په ډلو وویشئ له هغوی وغواړئ چې د خامو او ناپاکو مېوو، ناپریمنځل شوو ترکاریو، او یا د بدن او یا کالیو او چاپیریال د ککړتیا او په شخصي حفظ الصحې باندې د هغو د اغیز په هکله له یو بل سره بحث او خبرې وکړي، نظرې سره شریکې کړي او د نظر تبادله وکړي. | ۲۰ دقیقې |
| د لوست تحکیم | ښاغلی ښوونکی، له زده کوونکو وغواړئ چې هر یو د کتاب ۵۵ مخ انځورونه وګوري او ووايي چې له کومو توکو ګټه اخېستنه زیان لري اوله کومو توکو استفاده ګټه لري په هکله دې خپل دلایل بیان کړي هغوی وهڅوئ اومرسته ورسره وکړئ چې د لوست موضوع ښه تحکیم ومومي. | ۵ دقیقې |
| ارزونه | ښاغلی ښوونکی، د لوست له زده کړې څخه د ډاډ په خاطر له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړئ چې د شخصي حفظ الصحې د اهمیت او پاکۍ په هکله ځواب ورکړي او ووايي چې د شخصي حفظ الصحې په خاطر کوم کارونه سرته ورسوي. | ۵ دقیقې |
| کورنی کار | د شخصي حفظ الصحې د اهمیت په هکله چې څومره پوهېږئ خپلو دوستانو ته يې بیان کړئ. | ۳ دقیقې |